# موچي

(د لنډو کيسو ټولګه)



ليکوال: نور محمد تره کی




## کتاب پېژندنه :

د کتاب نوم : **مــوچي**

لیکوال : نورمحمد تره کی

خپرندوی : په روسیه کې د افغانانو فرهنگي ټولنه

چاپشمیر: ۱۰۰۰ ټوکه

چاپ کال : ۲۰۱۳ میلادي / ۱۳۹۲ هجري لمریز

چاپځای : د دانش خپرندویې ټولنې تخنیکي څانگه

www.danishpress.com

a03



**لیکوال**

## نور محمد تره کی

a04

# په دې راټولونو کې

# د خپرندويې ټولنې يادښت

ارواښاد نورمحمد تره کی د افغانستان وتلی لیکوال او سیاستوال و. د هغه دلیکوالۍ هنري پنځونې د ناول، کیسې او لنډې کیسې په بڼه هم د شومره والي او هم د ځنګه والي له مخې د پښتو ادبیاتو د پام وړ برخه جوړوي چې زموږ د ټولنې فرهنګي میراث شمېرل کيږي.

د نورمحمد تره کي ناولونه ؛ د بنګ مسافري، څړه، سپين، او سنګسار وړاندې وروسته د هغه په ژوند کې د کتابونو په بڼه چاپ او خپاره شوي دي. خو لنډې کیسې يې د روانې هجري پېړۍ د دريمې او څلورمې لسيزې په اوږدو کې د هېواد په مطبوعاتو او له هغې جملې په کابل مجله کې په نامرتب ډول خپرې شوې دي او په ترتيب شوي کتابي بڼه د پښتو ادب مينه والو ته نه دي رسېدلې. له ډېره وخته د دې خبرې ضرورت محسوس و چې د ارواښاد نورمحمد تره کي لنډې کیسې راټولې او کتابي بڼه خپله کړي.

په ۲۰۰۴ ز کال د ښاغلو ډاکتر لطیف بهاند، شاه محمود حصين او ډاکتر ګل احمد تره کي په هڅو او هاند د هغه تيت او پرکې لنډې کیسې د وخت له مطبوعاتو او له خپلوانو سره د ساتل شوو اسنادو او اوراقو څخه د چاپ په هيله راټولې شوې، خو تراوسه په دې تمه ناچاپه پاتې وې چې نورې به هم راټولې او يو ځای به چاپ شي.

په دې ترڅ کې د نورمحمد تره کي په هنري پنځونو د روسي پښتوپوه او افغانستانپوه پروفېسور کانستانتين الکساندرويچ لېبېدېف او قرغز افغانپوه طلعت بېګ مصداقف څېړنيزې مقالې او تېزېسونه هم لاسته راغلل چې کولای شو وواېو د نورو ژبو د

پرتلیز ترازو په تول یې د پښتو ژبې دغه هنري کیسې د خپل وخت درانه آثار ګڼلي او نورمحمد تره کی یې په پښتو ژبه کې د هنري ریالیزم بنسټ ایښودونکی بللی دی.

سربېره پردې د نورمحمد تره کي په شخصي، سیاسي، ټولنیز او ادبي ژوند باخبره لیکوال او تاریخپوه ښاغلي شاه محمود حصین او همدارنګه کیسه لیکوال او کره کتونکي ښاغلي محمد زرین انځور د نورمحمد تره کي په هنري ژوند او آثارو ښې خورې مفصلې څېړنیزې لیکنې کړې دي چې د لنډو کیسو له چاپ سره به مل شي.

چاپي ښې ته د دغو کیسو د رسېدو په درشل کې خبر شوو چې په کوټه کې پښتو ادبي غورځنګ هم «د بزګر لور» په نوم د اروابناد نورمحمد تره کي د لنډو کیسو ټولګه چاپ کړې ده. دا چې په دغه ټولګه کې څومره لنډې کیسې او څنګه راټولې شوې دي، پوره خبر نه یو، خو د پښتو ژبې د دغه صادقو خدمتګارانو کار ځکه ستایو چې د ځای او وخت په سختو او تنګو شرایطو کې یې زموږ سره غیابي همفکري پاللې او د پښتو ادب دغه برخه یې له ورکېدو ژغورلې ده.

په پای کې په دې هیله چې په ګڼ شمېر پاچا ګشتیو کې زموږ د ټولنې فرهنګي هستې د سیاسي بدبینیو په اورکې ونه سوځي او زموږ ځوان نسل د پښتو ژبې د فرهنګي غنا په ګڼو اړخونو او پړاونو خبر وي، دا دی د اروابناد نورمحمد تره کي د لنډو کیسو ټولګه «موچي» د هېواد ځوان نسل او د پښتو ادب مینه والو ته وړاندې کوو.

**په فرهنګي مینه**

**په روسیه کې د افغانانو فرهنګي ټولنه**

# ارواښاد نورمحمد تره کی
# او د هغه لنډې کيسې

وايي پخوانو خلکو به داوږدو کيسو، اسطورو، او افسانو داوريدلو او لوستلو زغم درلود. خو هرڅومره چې دانساني ټولنې پرمختګ، پوهه، د پيښو پراختيا او پيچلتيا مخته لاړه دغه ځغم په رالويدو شو. له دې سره سم د پوهې او انساني منطق غوړيدو هم دډيرو زړو او تر ډيره عشقي تخيلي او توهمي افسانو باور کمزوری او ښکلا بې ورتته کړه. دبشري ټولنې دټولنيزې پوهې او شعور راغوړيدو هم هغه څه وکړل چې نور هنر دهنر له پاره له ټولې ځانګړې هنري ښکلا سره سره مخ په لويد شو. له همدې کبله بشري ټولنه دادب په نړۍ کې له يوې ادبي او هنري تشې سره مخ وه. لنډو کيسو يا لنډو داستانونو دغه تشه ور ډکه کړه. او دا ځکه چې لنډې کيسې د وخت،

چټک اغيز اودرنې ټولنيزې انتباهي پانګې پر بنسټونو ولاړې وي.

دلنډو کيسو شخصيت له مخکې جوړ او درومان يا ناول په شان د شخصيت د ټولو لورو ځيرلو او له اصلي تم سره پراخه تړاو نو ورکولو ته په کې اړتيا نه وه.

دايراني نامتو ليکوالو او کره کتونکو داکتر رضا براهني او داکتر شفيعي کدګني په خبره لنډه کيسه دوچ لحن درلودونکې او له ژوند څخه ديوې برخې را اخيستل دي. په لنډه کيسه کې پيل او پای ځای نه لري، ځکه هر ليکه يې د کيسې غوښتنه څرګندوي، په لنډه کيسه کې د زمان يوالی غوره دی، ژبه يې ساده او روښانه ده خو ابتذال نشي منلی.

لنډې کيسې په عشقي، انتباهي، تاريخي او د ژوند په بيلابيلو اړخونو د غزيدو وړ دي خو لکه څنګه چې د دغه هنري ژانر تاريخ ښودلې لنډې کيسې هم په لويديځ او هم په ختيځ ادب کې خپله ستره تومنه له ټولنيزو پيښو او حالاتو څخه اخلي او له همدې کبله دلنډو کيسو اتلان آسمانونو ته نه خيژي، په افسون، کوډو او خيال ډډه نه لګوي ، د معشوقې په سپينو ليچو کې د خيال خوبونه نه ويني، له ګلو څخه د شرابو کاسې نه جوړوي او د بلبلانو په ناروکې ځان نه ډوبوي بلکې مخامخ د انسان ژوند ،چاپيريال او د انساني اړيکو تل ته ور کيوځي.

دامريکايي ليکوال او نامتو کره کتونکي ادکار آلن پوه

په خبره دلنډو کيسو شخصيت داوږدو کيسو خلاف په چټکه د پيښو حساسو شيبو ته ورځي. دلنډې کيسې يوه ځانګړنه هم داده چې بايد نوښتي، ځليدونکې او هڅونکې وي.بايد لوستونکی له ځانه سره د پيښو تل ته ورکيباسي او انساني عاطفه او هيجان بې ولمسوي. لنډه کيسه بايد له پيل څخه ترپايه په يوه روښانه ليکه وغزيږي. دآلن پو په وينا د لنډې کيسې لوستل يا اوريدل بايد له نيم ساعت څخه تر دو ساعتو پورې وخت ونيسي. که دغه پورتنی ځرګند ونې چې بې له شکه نيمګړې دي په پام کې ونيسو نوپه زغرده ويلی شو چې داروابښاد نورمحمد تره کې لنډې کيسې دغه ټول فنون له ځانه سره لري.

دنړۍ په ادبياتو کې دګوګول، ګي دوموپاسان، انتوان چخوف، ، کاترين منسفيلد ،شرود اندرسن، او هنري، ارنست همينګوې، کنراد ، کپلينګ او سالينجر نومونه دهغو نامتو ليکوالو په ډله کې راځي چې ترټولوښکلې، په درنه ټولنيزه تومنه ولاړې ،انسان پاله انتباهي لنډې کيسې بې ليکلي دي. دغه کيسې هم د سولې په حالاتو کې او هم په کورنيو او نړيوالو نښتوکې دټولنيز عدالت او انساني احساس پر بنسټ دتل پاتې وياړنوور ګرځيدلي دي.

خوزه دلته په دې لنډو ځغلنده ځرګندونو کې نه دلنډو کيسو په تاريخ او نه هم دنامتوکيسه ليکونکو په ادبي سترو ميراثونو څه ويل غواړم، بلکې دپورتنيو ځرګندونو

له مخې غواړم د اروابناد نور محمد تره کي لنډو کيسو او د دغو کيسو ادبي او ټولنيزې برخې ته ور وګرځم. د مطلب په پيل کې غواړم يادونه وکړم چې د پښتون اولس يوه ستره کمزورتيا چې ټول تاريخ يې ور ځورولی دی، داده چې نه يوازې د خپل شخصيت پالنه نه کوي بلکې ځغم يې هم ورته ګران دی. په دې برخه کې دا يوازې نور محمد تره کی نه دی چې ټول ژوند او ادبي شتمني يې په ډېره بيرحمۍ د مخکني عيار شوی ذهنيت له مخې د ښکاره دښمنۍ او تعصب په ترازو تلل کيږي، بلکې زه په پښتنو سترو ليکوالو او د قلم، ادب او هنر په نامتو کسانو کې داسې څوک نه وينم چې د غه خپيره يې نه وي خوړلي.

په دې برخه کې د نور محمد تره کي په هکله له بنسټپالو مخکې هغو کسانو توري را ايستلي چې نوم يې د روښانفکرانو، ليکوالو او کره کتونکو په لست کې هم غټ ځای لري. په دې برخه کې سياسي تعصبات، مذهبي انګيرنې خوځښت چې له بده مرغه آن قومي او سمتي ليوالتيا وې خپل ځان ښيي. همدغې لوبې ته دوخت واکمنو سياستونو هم پونده ورکړې او ډير دورځې په نرخ ليکوال او تش په نوم کره کتونکي يې ډله ډله له يوې لويې ادبي شتمنۍ سره د جګړې ډګر ته را ټيل وهلي دي. زه دلته د چا نومونه نه اخلم او نه غواړم د کوم منل شوي تعصب له مخې له چا سره مخ شم. خو دومره وايم چې هغوی چې د نور محمد تره کي ادبي آثار او په تيره بيا لنډې کيسې د ژبې او ادبي

تــو منې لــه مخــې کمــزورې بــولې بايــد لــږ تــر لــږه لانــدې واقعيتونو ته لږ څه پام وساتي:

لومړی- د نور محمد تره کي لمړې لنډې کيسې هغه چې دوخت مطبوعاتو په تيره کابل مجلې خپرې کړې ميلادي ۱۹۴۲ کال ته رسي. يعنې داچې دغه ادبي نوښت د تره کي په قلم له نن څخه ناڅه اويا کاله مخکې په افغاني ټولنه کې را منځ ته شوی دی. که څوک د اوياکالــه وروستــه معيــارونو پــر بنسـټ د تيــرو نسـلونو ارزونې وکړي نو په يقين چې په دغــه ډګرکې بــه زموږ د تير ادبي بهير آن ډير نامتو شخصيتونه يو هم بې داغه پاتې نه شي.

دويـم: د پښــتنو ليکوالــود ژونـد او ليکنــو ډيــره اوچتــه برخــه ارواښاد بينوا د «اوسني ليکــوال» تـر سريزې لانـدې پــه درې ټوکــو کې را ټوله کړې ده. که د دغه اثردرې واړو ټوکـو تـه کتنـه وشي نــو لومړی خو هغلته ۹۹ په سلو کـې د شـاعرانو تــر نامــه لاندې پښـتو نظـم ليکــونکي را ټــول شــوي او د ليکوالــو او هغــه هــم د لنډو کيسو ليکوالو څرک په کې ډير لږبريښي. په واقعيت کې دغه اثر د هغــه وخــت شــاعرانو يــا نظـم ليکونکو تــه ځــانګړی شــوی دی.

د همدې اثــر پــه لــومړي ټــوک کـې د لنډو کيســو ليکــوال يــواځې نورمحمــد تــرکـی او پــه وروســتـۍ برخــه کـې غــوث خيبــري ښــودل کيږي. د غوث خيبري د لنډو او منځنيــو کيســو لړۍ د ده د ژونـد پـه ډيرو راوروسته وختونو کې پيل کيږي. د هغه نثري ليکنې د اجمل خټـک، عبدالخالق اخلاص، ګل پاچا الفت، محمد اعظم ايازي، پرهيز، اوآن حبيبي، بينوا، رشاداو نورو نـامتو ليکوالـو پـه شـان تر ډيره ادبې ټوټې دي نه لنډې کيسـې. د اجمـل خټـک، مســافر تــه

خطاب، د اخلاص «پسرلی»، د الفت بيګناه بندي، د محمد اعظم ايازي «خدايي غاتوی» (غاټول) او دې ته ورته نورې ليکنې ټولې ادبي ټوټې دي نه لنډې کيسې. په دغه مهال کې خو له نورمحمد تره کي پرته د پر له پسې لنډو کيسو ليکوال يا نشته او يا خو هم دومره لږ دي چې ادبي اعتبار يې له لنډو کيسو څخه نه دی اخيستی.

ترکومه چې د بينوا صاحب را ټولونې ښيي د حبيب الله تږي «جړ او ربل»، د هغه وخت د ټولنې د بيعدالتيو پر خلاف د ډېرې شتمنې ټولنيزې تومنې لرونکې دي. خو د لنډې کيسې رنګ نه لري. د جلالي «د ليکوال برخه» هم همدغه شان يو ټولنيز مضمون دی. د علامه استاد عبدالحی حبيبي «تور پيکی» هم يوه رومان ډوله سرګذشت ته پاتې کيږي نه لنډ داستان ته. که د غوث خيبري «زوړ کميس» د لنډې کيسې فنکاري له ځانه سره لري، د عمر له پلوه ډير ځوان دی او د نورمحمد تره کي د لنډو کيسو ليکلو مهال ته نه وررسي. په راوروسته کې هم د بيلګې په توګه له اروابناد دوست شينواري او راحت زاخيلي څخه لنډې کيسې لرو، خو د دوست شينواري «د پلار وصيت» او «د زيارت ډيوه» بيا هم ادبي ټوټو ته ورته دي نه لنډو کيسو ته. د لنډو کيسو په فن کې راحت زاخيلي ډير اوچت ځای لري. «د سين څپې څپې آبا سين څپې څپې» په شان خوږه کيسه يې هنري پوخ رنګ لري خو تر ډيره يوه عشقي کيسه ده نه د ټولنيزې تومنې درلودونکې لنډه کيسه. بايد يادونه وکړو چې په نظم کې د لنډو او آن اوږدو کيسو تاريخ مو ډير روښانه دی او له دې سره تمثيل او ډرامې هم په نظم او نثر کې

غوړيدلې دي، خو د دغې برخې شاعرانو او ليکوالو کله هم ځانونه دلنډو کيسو ليکونکي نه دي ښودلي. دهمدې لنډو څرګندونو له مخې ويلی شو چې نورمحمد تره کی په افغانستان کې لږ تر لږه په ښکاره دلنډو کيسو پيل کوونکی دی. ده دغه هنر هغه وخت راپيل کړی وچې لا په دري ژبه کې د نجيب الله توروايانا «اوشاش» داستاد خليلي «زمرد خونين»، دعبدالغفور برښنا «کاکه اورنګ وکاکه بدرو» لنډې کيسې چا نه پيژندلې، اودغه شان دعلي احمدنعيمي، محمد عثمان صديقي، مير محمد صديق فرهنګ، عبدالرحمن پژواک، عبدالحسين توفيق، رضا مايل هروي، محمد موسی شفيق، اکرم عثمان، رهنورد زرياب او نورو ليکل شوې يا را ژباړل شوې لنډې کيسې چا نه پيژندې. دغوټولو واقعيتونو ته په کتلو نورمحمد تره کي په يوه ډيره وروسته پاتې ساتل شوې ټولنه کې دهغه هنر تيره کيښوده چې په نوره نړۍ کې به دپوره کمال په لور خوځيدلی وي خو په افغانستان کې دغه هنرڅه خاصه ځلا نه درلوده.

دريم- ليکوال دخپل چاپيريال زيږنده دی. دهر ليکوال ليکنې دهغه دچاپيريال هنداره ده. لوستونکي بې هم تر ټولو مخکې دهمغه چاپيريال زيږنده دي. په يوه ادبي او هنري اثر کې تر هغه ځايه چې په خپل چاپيريال را غوړيږي همغه ژبه په کار ده کومه چې دهمغه چاپيريال خلک پرې پوهيږي. دخلکو ژبه ساده، روانه، بې الايشه خو دښاري ژبو په پرتله بې له شکه يو څه درنه او شډله بريښي. خوند ،قوت او پر احساساتو اغيز بې هم هغوته ښه بريښي کوم چې ليکنه دهغوی له ژوند سره تړلې وي. دنورمحمد

تره کي دليکنو ژبه دهغه دخلکو او دوطن دهغو پرګنو ژبه ده چې دنورو بيعدالتيو د زغملو په خنګ کې نارو ا ټولنيزو مناسباتو دهغوي دژبې او ادبياتو مرۍ هم ورنيولې ده. تره کی همدغو خلکو ته ليکي ،په همدې دليل ژبه يې دخلکو او پرګنو ژبه ده.

څلورم- تره کی په رسمي ډول دلږو زده کړو خاوند دی خو دخپلې هڅې او هاند له مخې هغه ادبي فن کار دی چې په هند کې دهندوستان له ډيرو شتمنو ادبي پانګو سره بلدتيا لري او دنړۍ په کچه له ماکسيم ګورکي، پوشکين، چخوف، ارنست همينګوې او لسګونو نورو نامتو ليکوالو سره مينه لري، دهغوی په ژوند او ادبي تخليقاتو يې ليکنې کړي، او په داسې زمانه کې يې دبهرنيو ادبياتو متنونه را ژباړلي چې هغه وخت په بهرنيو ژبو ډير لږ څوک پوهيدل او ډيرې لږې ژباړې تر سره شويدي. ددې خبرې معنی داده چې تره کي دا توان درلود چې ډيره اوچته ادبي ژبه په کار واچوي، خو هغه يو لوی ټولنيزانسان پاله آرمان لري، هغه آرمان دخپلو خلکو را ويښول، له نارو ا او بيعدالتيو سره مقابله او ټولنه له زړو توهمي انګيرنو څخه را ويستل و، دغه آرمان ته دخلکو ژبه په کار وه. دهغه هنر دهنر له پاره نه و. له فکري پلوه هم هغه هنر دخلکو په خدمت کې نيولی و. دهغه دغه دريځ ته دطبقاتي دريځ عنوان ورکول بـه سم وي، خوغندنه يې دهغو طبقاتو په ويالو اوبه ور سيخول دي کوم چې دغه ټولنه يې په اوږدو بيعدالتيو کې ويده ساتلې وه.

پنځم – ستونزمنه به وي چې دتره کي ادبي شخصيت دهغه له

سياسي شخصيت څخه جلا وځېړل شي. د ده د سياسي شخصيت دښمنان به ځان په حق وبولي چې د خپلې روا يا ناروا دښمنۍ سندرې تودې وساتي. خو د تره کي د سياسي شخصيت له مخې دهغه دادبي تخليقاتو پانګې ته اوراچول په ښکاره زموږ دخلکو له ژبې او ادب سره دښمني ده.

شپږم- د تره کي زمانه دحبيبي، بينوا، رشاد، ګلاب ننګرهاري، ګل پاچا الفت، قيام الدين خادم او په لسګونو نورو نامتو ادبي شخصيتونه زمانه ده. په همدې زمانه کې دتره کي ادبي تخليقات نه يوازې دچاپ او خپريدو امکان تر لاسه کوي بلکې يو شمير آثار يې په وطن کې دوخت دمطبوعاتو مطبوعاتي جايزې هم تر لاسه کوي. په دې برخه کې کولی شو د «بې تربيته زوی» لنډې کيسې او دغه شان «دځلميانو لارښود» اثرته ګوته ونيسو. لومړي اثر په لمريز هجري ۱۳۱۸ کال او دويم اثر په ۱۳۲۲ کال مطبوعاتي جايزې تر لاسه کړې. دتره کي بد خواهان بايد پوه وي چې هغه وخت تره کي کوم مالي توان، زور او وسيله نه درلودله او دهغه وخت د مطبوعاتو چلوونکي هم درانه شخصيتونه وو. دغه جايزې په خپله ښيي چې دتره کي هنر دهمغې زمانې په تله ډير درروند اودکمال پوړيوته ورجګ شوی و. ۱۳۱۸ کال ! اوس ۱۳۹۱ يم کال دی. دري اويا کاله مخکې دوخت مطبوعات ادبي جايزه ورکوي خو ۷۳ کاله وروسته زموږ يو شمير ړانده او کاڼه. نه يوازې دهغه ادبي توان نشي ځغملی، بلکې هغه ته دبيسواده خطاب هم کوي.ولې؟ ځواب يې له ويلو پرته روښانه دی. ځکه چې دهغه سياسي او فکري شخصيت ددغه شان ليکوالو او کره

کتونکو له خپلو ګټو او يا د دوی د ملاتړو او ډوډۍ ورکوونکو له ګټو سره سمون نه لري.

که خبره را لنډه کړو نو زماني اوړي او وختونه تېرېږي، د رڼا او ترږمۍ په جګړه کې د انسان په انسانيت سمبال له ياده وتي يادونه له سختو اغزنو لارو او کنګل شوو پېچومو اوړي او د تاريخ زړه ته لاره باسي، غوړېږي او تلپاتې ژوند مومي. د زماني ترخه، تند او بېباکه توپانونه کولی شي ډېر څه په خپلو لړو کې را ايسار او د زماني له زړه څخه يې د لوېدو لور ته ورکښېباسي، خو حقيقت د تاريخ تومنه او د انسانيت د پايښت ناموس دی. پټېدی شي خو ورکېدی نه شي. له حقيقت سره ډغرې او ټکرې هيڅکله، هيڅ چيري او د هيڅ چا له پاره د تلپاتې بري ژمنه نه شي کولی.

د اروابناد نورمحمد تره کي ليکنې، لنډې او منځنۍ کيسې، ناولونه او له بهرنيو آثارو څخه په زړه پورې ژباړنې او ټول قلمي کارونه چې يو نسل ګام په ګام د لوړېدو په لور خوځي، ټوله تومنه يې د انسان د نېکمرغۍ په لور د بدمرغيو پر خلاف د اوږدې جګړې يو دروند فصل دی. د هغه د ادبي کار اصلي سوژه، تم او کرکتر هغه انسان دی چې د ظلم، تېري، ناروا او محروميت درنې څپېړې يې خوړلې دي.

اروابناد نورمحمد تره کی يو ليکوال او د خپل ټولنيز چاپېريال يو انځورګر دی. د هغه چاپېريال د ظلمونو، تيارو، تيريو، لوټ، دوکه ماريو، فريب او غوړه ماليو، ناوړو دودونو او له حقيقت څخه توهم ته د ورلوېدو چاپېريال دی. دی د همدغه چاپېريال پر خلاف د حقيقت په اوږو د رڼا لور ته خوځي. دی په

ښکاره آرام خو په زړه لګېدلی او قهرجن دی. دی به د نن له معیارونو سره جوړې شوې ډېرې او چټې هنري او ادبي کیسې. په استعارو، سمبولونو او هنري زړه راښکونکو انځورونو ولاړې لیکنې او کیسې ونه لري خو هنر یې خوښېږي او له هنري ښکلا څخه خوند اخلي. څرنګه چې هنر د هنر له پاره د ده موخو ته مرسته نه شي رسولی نو دی هغه ریالستیک بیان ته مخه کوي کوم چې ژبه یې له خپلو خلکو او خپلو هدفونو څخه لرې نه شي. هغه همغه څه وايي چې ویني یې. په هغه ژبه یې انځوروي چې د ده د چاپېریال خلک خبرې پرې کوي. کلیوالي ژوند سخت او شډل دی. هلته له ناولتیا سره د سپیڅلتیا جګړه هم سخته او درنه ده. د دغه چاپېریال ژبه هم درنه، شډله خو له ریا پاکه ده.

ارواښاد تره کی د خپل وخت له ادبي نړۍ څخه ډېر څه لري. د خپلې مورنۍ ژبې په څنګ کې له دري، انګلیسي او اردو ژبو سره پوره بلدتیا لري. د سیمې او نړۍ د ډېرو وتلو لیکوالو له تخلیقاتو سره پېژندګلوي لري او ډېر په زړه پورې څه یې له همدې لارې په پښتو او دري آثارو ور زیات کړي دي. د هند د نیمې وچې له شتمن ادبي بهیر څخه ډېر څه ور سره دي او د اروپا د ادبي دنیا له ډېرو شتو او نامتو څېرو سره څېړنیزه پېژندګلوي لري. د ادبیاتو په هنري ښکلا او د ادبي تخلیقاتو په فني اصولو لاسبری دی خو له دې ټولو سره سره هغه د یوه دردېدلي ټولنیز چاپېریال په دننه کې یو ځانګړی فکر، لاره او آرمان لري. دغه فکر، لارې او آرمان ته ساده، روانه او له لفظي پېچلتیا وتې ژبه په کار لري. دی ریالیزم یوازې د پېښو په انځورونو کې نه بلکې د ژوند په ټاکنه

کې هم ساتي. د ده په چاپېريال کې "تقوی د جنايت په لمن کې نغښتې ده " د دغه جنايت په وړاندې شکرينه ژبه د بيان توان نه لري. هلته چې ملاک، ملا، محتسب، قاضي او حاکم ټول د يوه تور جال ببلاببلې او بدل شوي غوټې دي او د همدې چاپېريال ځورېدلی انسان په همدې جال کې را ايسار شوی دی، د دواړو لورو ژبې ته يو ازې د هنري توب په خاطر بدلون ورکول له رياليزم او حقيقت څخه خيال او توهم ته ورلوېدل دي. د هغه درنه او قهرېدلې ژبه د هغه د چاپېريال زېږنده ده، يوه سَرَه په لفظي ښکلا او نازکخياليو ولاړه انځوريزه ژبه د هر چا خوښېږي خو هر څوک بيا پرې پوهېدی نه شي. اروانباد تره کي ته د خپل ماحول د خلکو پوهېدنه د يوه ښاري رسېدلي قشر د خوښېدو ترخبرې لوړېتوب لري. دی د خپل احساس، فکر او آرمان بيان ته د خلکو ژبه د بيان غوره وسيله بولي. د ځينو کورنيو او بهرنيو کره کتونکو دا نيوکې چې وايي د ده لکينې او کيسې ژوره ادبي او هنري تومنه نه لري، له څه ناڅه رښتينتيا سره سره د دې خبرې څرګندوی دي چې ډېر دغه کره کتونکي د ده د ليکنو سبک ته د ده د فکر، لارې او آرمان له موخو سره منطقي پيوند نه شي ورکولی، هغه ټولنيز شرايط چې د ليکوال د ليکنو اتلان پکې رازېږي او لوېږي نه شي ليدلی او تر ټولو درنه خبره دا چې هر څه د نن ورځې په معيارونو تلي او پرون له ياده باسي. په دې لړ کې د آدموند ويلسون په خبره چې وايي: "زموږ د زمانې يوه فکري ناروغي هم دا ده چې ډېر هغه څوک د کره کتنې په اډانه کې قلم خوځوي چې په ځانګړې توګه په همدې برخه کې په هيڅ نه پوهېږي". په ځای بولو.

په دې لنډه يادونه کې نه غواړو او نه شو کولی د اروابناد نورمحمد تره کي د ليکنو، لنډو، منځنيو او اوږدو کيسو، ناولونو او ژباړو ټول جاج واخلو او د هغه د آثارو د مينه والو او مخالفينو ستاينې او نيوکې راوسپړو، هيله دا ده چې د غه برخه په پر له پسې توګه يو وخت له پردې راووځي، وڅېړل شي او کره او ناکره يې په بې غرضه توګه د نورو نسلونو د زده کړې له پاره په ګوتو شي.

په ډېر درنښت

ش. حصين

لندن - ميلادي ۲۰۱۲ کال

# پښتو داستاني ادبيات
# د سياسي _ فکري مبارزې پر کرښو

نورمحمد تره کی په افغانستان کې د پښتو داستاني ادبياتو له مخکښو څېرو څخه دی. د هغه داستاني ليکنې د څو عمده ځانګړونو لرونکې دي:

۱_ هغه يو جدي کيسه ليکونکی دی. کيسه ليکنې ته يې په خپل وخت کې جدي کار کړی او د خپل ادبي ژوند نزدې ټوله برخه يې کيسه ليکنې ته وقف کړې ده.

۲_ د کيفيت له پلوه يې داستاني ليکنې د پوره غوره وړ دي، د دې په څنګ کې يې د کميت له اړخه هم داستاني کار د پام وړ دی. په هغو کلونو کې د ده په اندازه لنډې کيسې او ناولونه زموږ بل ليکوال نه دي کښلي.

۳_ په داستاني آثارو کې يې يو ځانګړی سياسي _ فکري خط تعقيب کړی دی. لکه څنګه چې يې وروسته د سياسي _ طبقاتي مبارزې لپاره عملي ګامونه واخيستل او د يو سياسي ګوند مشري يې خپله کړه او بيا يې سياسي واک ترلاسه کړ، دغسې يې پخوا لا په خپلو داستاني آثارو کې د بزګرانو، خواريکښانو، مزدورانو او کارګرانو په ژوند ليکنې وکړې او د طبقاتي مبارزې لپاره يې خپل دغه

آثار هم ځانګړي کړل. په دې توګه يې داستاني آثار هم تر ډېره د سياسي ـ طبقاتي مبارزې رنګ لري.

۴ـ د هغه وخت د افغاني ټولنې ګڼ شمېر ځانګړنې په دغو آثارو کې ځای شوي او داستاني شوې دي. اجتماعي نيمګړتياوې يې د داستاني ليکنو په پانو کې پر بمانه دي.

د نورمحمد تره کي داستاني ليکنې د لنډو کيسو او ناولونو په دواړو بڼو موږ ته راپاتې دي. خو عمده برخه يې هغه ناولونه دي چې نو موړي له نن څخه او يا ـ اتيا کاله پخوا ليکلي او هماغه وخت يې خپاره کړي هم دي.

استاد بېنوا د هغه پر کيسو او ناولونو ليکلي دي:

"(تره کی) په ليکلو کې ټاکلی سبک لري. په تېره بيا له ۱۳۲۹هـ کال راپه پخوا د ده د ليکلو په طرز او هدف کې څرګند توپير راغلی دی او تل يې د خلکو د حقيقي او طبقاتي ژوند څرنګوالی په لنډو لنډو ليکنو او ناول کې ليکلی او د اولس ژوند يې څرنګه چې دی، هغسې تمثيل کړی دی. د ده لنډ نکلونه چې شمېر يې د پړشو ته رسېږي، اکثر په کابل مجله کې خپاره شوي او په دې نکلو کې زياتره د خلکو پر کليوالي ژوند رڼا اچول شوې ده."[1]

پښتو ادبي غورځنګ ـ کوټه د تره کي د ناولونو د نوي چاپ په سريزه کې د دغو ناولونو پر ارزښت داسې تبصره لري:

"... چې هر کله د پښتو کيسه ييز ادب ذکر راځي، نو د نورمحمد تره کي پنځونې به هرو مرو ذکر کېږي. هغه په دې

چې نور محمد تره کي پښتو ادب ته دومره په لوړه کچه ناولونه وړاندې کړي دي چې تر اوسه پورې پر دې ناولونو باندې څو لسيزې تېرې شوې دي، خو دوی خپل ارزښت له لاسه نه دی ورکړی.»[۱]

د نورمحمد تره کي لنډې کيسې او ناولونه د پښتو د معاصرو داستاني ادبياتو مطالعه کې خپل خاص ځای لري. له ۱۳۱۸هـ.ش. کال راهيسې د هغه ناولونه او کيسې خپرې شوې دي. د لنډو کيسو بېلا بېلې نمونې يې په مطبوعاتو کې خپرې شوي او د څو کيسو يوه کوچنۍ ټولګه يې د "موچي" په نامه چاپ او خپره شوې ده. په اوسني ليکوال کې يې د "غوايي لاندی" او "د بزګر لور" په نامه کيسې د نمونو په توګه راغلي دي.[۲]

د دغو لنډو کيسو د زياترو يې موضوعګانې سره ورته او يا نږدې دي.

ناول ليکنه د نورمحمد تره کي د قلم هغه پنځونې دي چې په خاص ډول ورته بايد تم شو. په خپل وخت کې زموږ د ټولو داستاني ليکوالو په تناسب په دې لړ کې د هغه کار د کميت او کيفيت له پلوه زيات دی. د هغه څلور ناولونه په ځانګړې توګه خپاره شوي او يو يې په کابل مجله کې خپور شوی دی.

په جلا ډول خپاره شوي ناولونه يې دا دي: سنګسار، څړه، سپين او د بنګ مسافري.

سنګسار په ۱۳۲۲هـ.ش. کال کې ليکل شوی، خو د هغه

د خپلې واکمنۍ په دوره کې (۱۳۵۷هـ.ش.) خپور شوی دی.

"سپین"، "ځره" او "د بنګ مسافري" د ۱۳۳۵ څخه تر ۱۳۳۸هـ.ش. کلونو پورې لیکل شوي او چاپ شوي دي. وروسته د هغه د سیاسي واک په دوره کې د دغه ټول په بڼه قطع او صحافت په لوړ تیراژ سره چاپ او خپاره شوي دي.

د تره کي آثار د یو لړ ځانګړنو لرونکي دي چې لازمه ده دلته په ترتیب سره اشاره ورته وکړو:

۱. دغه آثار تر ډېره حده د یو خاص فکري او ایډیالوژیک سیاسي مکتب د اهدافو لپاره لیکل شوي دي. له خپل په زړه پورې والي سره سره چې لري یې سوژې او موضوعګانې یې سره تر ډېره ورته دي. د پېښو تسلسل هم ډېر لږ تفاوت لري او دا ځکه چې د ډېرو خاصو فکري ـ سیاسي کرښو په چوکاټ کې رانغاړل شوي دي. د پېښو، کرکټرونو، سوژو او حتی نتایجو او پایلو ورته والی دغه ناولونه (او حتی لنډې کیسې) ډېرې سره ورته کوي او پر یوه یې د بل فکر کوي.

"ځره" د یو کلیوال غریب او بد مرغه ځوان کیسه ده چې په کلي کې یې غریبي دومره ناتوانه کوي چې مجبوریږي د "جره" او "ځره" په توګه تر کوټې په ډېرې خوارۍ ځان ورسوي، یو څه پیدا کړي، خو په لاره کې یې تړې غله وتروري.

"د بنګ مسافري" هم تقریباً ورته کیسه لري. یو ځوان "بنګ" د غزني په یوه لرې پراته کلي کې بد مرغی او

غريبی، تنګوي او د کندهار پر لور روانېږي. په کندهار کې يو څه پيدا کوي او بېرته کور ته راستنېږي.

"سپين" بيا د يو کليوال ځوان داسې کيسه ده چې پلار يې په ډېرو ناخوالو شتمن کېږي، خو چې شتمن کېږي ظالم ترې جوړېږي. د پلار له مرګه وروسته يې زوی د کلي د ملک، ملا او صاحبزاده په ملاتړ د ټولو ورونو حق اخلي او نادودې پرې کوي.

د "سنګسار" سوژه بيا يو څه توپير لري او د کليوال ژوند پر ځای د ښاري ژوند د بدمرغيو څرګندويه ده، خو د ټولو عمومي روحيه يوه ده، ځېرې او کرکټرونه سره ورته دي.

۲. په کيسو او ناولونو کې د کارګر او مزدور د يووالي او اتحاد او د شتمن او "کار فرما" په وړاندې د دغو مزدورانو کارګرانو دربدل، ډېر زيات راغلي دي. دا د هغو سياسي ـ فکري کرښو څرګندونه کوي چې ليکوال پرې معتقد دی او د همدې طبقاتي مبارزې د ايډيالوژيکي اصولو لپاره مبارزه کوي.

په "څړه" کې لولو:

"... په دغه ډله کې يو خورا ښه تکړه زلمی دی چې ښې او په زړه پورې خبرې کوي. دی د څړه ګانو په ډله کې راغلی دی، خو هر څوک د يو لوستي او سرېږېکړې زلمي په سترګه ورته ګوري.

د ده زړه سوی هم مشهور دی... کوم وخت چې تور او لنګري دی راوباله چې له دوی سره يو ځای ټيکه دارانو ته ورشي چې له هغوی سره مزدوران شي او پښکي پيسې واخلي، نو هغه سمدلاسه ومنله او خپلو دريو څلورو نورو ملګرو ته يې هم وويل چې دا ډول ملګري او يو ځای والی خورا ګټور دی.

د کار په وخت کې د غه ډول يووالي دو ملګري لا نوره ګټه هم لري. ټيکه داران به څه راته ويلای نه شي او حق به مو نه شي خوړلای. که يې چېرې په کوم ملګري تېری کاوه، سمدلاسه به کار ورخوشې کړو او ټول به په يوه پلا له کار څخه راووځو چې البته هغه وخت به د ظالم سر ته سد ورشي او دستي به له ناروا کولو څخه لاس واخلي.

که چېرې ټول کارکوونکي سره يو موټی شي او ويوهېږي چې ټوله نړۍ به د دوی شي او ټول هغه لېوان چې د انسان په جامو کې ښوري، ورک شي، دا خو ښکاره خبره ده چې کارکوونکي او پره خلک که نن وي، که سبا ټول په يو موټی شي او هغه ورځ به د دوی توره شپه په رڼا ورځ واوړي.

تور لنګري ته وويل:

_ دا څو مره ښه او خواخوږي سړی دی. د کارکوونکو سره څومره مينه لري، درځه چې په همدغه زلمي پسې شو، هر چېرې چې ده خوښه کړه، هلته به کار کوو.

لنګري ومو سل:

ـ وروره! خـود بـه د کـار کوونکـو سـتاينه کـوي، ځکـه چـې دی پخپلـه د کـار کوونکـو لـه ډلـې څخـه دی او د ده ګټـه او تـاوان د کـار کوونکـو د ډلـې لـه ګټـې او تـاوان سـره تړلـي دی..."[۴]

په همدغه اثر کې بیا هم لولو:

"... هغـه د دوی دواړو خبـرې غـوږ کـړې او ورتـه يـې وويل:

ـ دغـه ترتيـب يـوازې پـه ټيکـه دارانـو او جمعـدارانو کـې نـه وي. دغـه نـور خلـک لکـه بـدايان، د ډېـرو مځکـو څښـتنان، د فـابريکو خاونـدان، واکـداران او داسـې نـور هغـه کسـان چـې پخپلـه کـار نـه کـوي او د نـورو پـه زحمـت او خواريـو بانـدې ژونـد کـوي، د اوپـره خلکـو پـه مقابـل کـې چلونـه وهـي او دوی پـه ډول ډول خبرو غولوي او د دوی ګټې ترپښه تروښوي.

مـوږ کـار کـوونکي او اوپـره خلـک بـه تـر هغـو پـورې د ښادۍ پـه نړۍ ونـه خېژو، تـر څو چـې د دغسـې لېوانـو او مفت خـورو پـه مـخ کـې يـو مـوټی نـه شـو، خـو مـوږ ځکـه درې وړې يـو چـې زمـوږ د ډلـې يـا طبقـې ضـمير نـه دی راويښ شـوی او پـه خپلـه ګټـه او تـاوان خبـر نـه يـو. دا پورتـه طبقـې تـل د اوپـره خلکو طبقه يا ډله د اوپره خلکو په ضد استعمالوي..."[۵]

"د بنګ مسافري" کې په همدغه لړ کې لولو:

"وروره! تـا نـه دي اوربـدلي چـې د جهـان غـم نـه غـم دی. دا د يـوې ورځـې تنخـواه خـو مـې ځکـه بايلولـه چـې کـارګرانو د خپلـو کـالو لپـاره عريضـه کـړې وه چـې دوی تـه د فـابريکې د

ښځینتون له خوا د ژمي کالي ورکړل شي. خو ښځینتون دا خبره نه ومنله او هغه یې له خپلې ګټې او خپل اصول سره مخالفه وګڼله. بیا ټول کار کوونکي که یې لوی کار په لاس کې و او که یې کوچنی، ټول په یوه پلا له کارخانې څخه راووتل او کار بېخي وچ ودرېد.

د فابریکې ښځینتانو چې دا وضعیت ولید، سمدلاسه وارخطا شول او څو کسه یې له موږ څخه وروغوښتل او بې درنګه یې زموږ غوښتنې ومنلې او د ټولو لپاره یې کالي راجوړ کړل چې دغه اوس یې ته خپله وینې.

بنګ لږ سا واچوله او وروسته له هغه چې د ماشین په تېلو غوړه خولې یې په تندي سمه کړه، وویل:

ـ زما خلیفه خورا تکړه سړی دی، په فیل نه دی بند. ده په دې معامله کې لوی او لومړی لاس درلود، نو تا ته خو ښکاره ده چې بدنیته خلک هم هر چېرې موندل کېږي، یو چا د فابریکې ښځینتانو ته اطلاع وررسولې وه چې ما شینکار په دې کار کې ډېره برخه اخیستې وه او د کار کوونکو د حق، اخیستلو لپاره یې ډېر زیار ایستلی و، نو ځکه یې پر ده او څو کسو نورو د یوې ـ یوې ورځې تنخوا ناغه کښېښودله. ځنګه چې زه یې د ده شاګرد بللم، نو ځکه یې له ما څخه هم د یوې ورځې معاش د ناغې په ډول واخیست. پروا نه لري دغسې پېښې خو پېښېږي...″[۲]

د طبقاتي مبارزې جدي بحث بیا په نورو پېښو کې هم تعقیبېږي:

"يو بل ډنګر غونډې زلمي چې مخ يې وچ او ژېړ ښکاره کېده. ځان سره راټول کړ او په خورا زړه نازړه يې... صاحب ته وويل چې:

ـ د سوداګرو او بډايانو په طبقه باندې پلو نه اچول کېږي، يعنې دوی له دې مسؤوليت څخه نه خلاصېږي، خو تاسې په خپله انصاف وکړئ او يوه ګړۍ ځان بې طرفه تصور کړئ او بيا قضاوت وکړئ چې آيا دغسې نه ده. آيا ستاسې طبقه چې ځينې نورې طبقې هم درسره دي، د ټولو خلکو په ژوند لوبې کوي؟ که يې ړزه وغوښتل ټول خلک له لوږې او قحط سره مخامخ کوي او بيا که يې زړه وغوښتل، ټول خلک په دې تهديدوي چې بربنډ وګرځي او مړي يې بې کفنه ښخ شي..."[۲]

په "سپين" نومي ناول کې د سپين پلار داسې څوک و چې په کليو کې به يې پر خره سودا ګرځوله او خرڅو له به يې، بيا يې يو څه شته پيدا کړل او د کلي د خان ملګرتيا يې هم ترلاسه کړه. د سپين پلار څلور ښځې کوي او کله چې مري، نو پر ميراث يې د بېلا بېلو ښځو او د هغو د بچو ترمنځ يو لوی کړکېچ رامنځته کېږي. د سپين مور د کلي خان ته د طبقاتي مبارزې دغه ډول خبرې کوي او داسې خبرې د يوې کليوالې ښځې له خولې مصنوعي او غير طبيعي بريښي.

"... دغه لڅ لپړ، پښې لڅي چې ګډلې يې په شلولارو سره تللې او د ګډلې په هر کوټ کې يې په زرهاوو سپېږې

دي، داسې ساده او مازي شیان مه ګڼه. دوی هېڅ وخت زموږ په شان له خلکو سره چې یو څه ګوله ډوډۍ خدای ورکړې ده، دوستان نه دي، که یې زموږ مال په لاس ورشي، هغه بیا په اسانۍ ببرته نه ورکوي، کومه ورځ چې اړ شي او کوچنیان یې له لوږې ناارې ورته وهي او پخپله هم په نس نوکارې لګوي، نو د شپې ننواتې راشي او یو څه په سود و سلم غواړي، خو هغه وخت چې د سلم د ادا کولو او یا د سود د ادا کولو نېټه یې راشي، نو ځان یوې خوا و بلې خواته کوي او په زور پلمې جوړ کړي. هېڅ وربانده ي نشته، خو په دغسې حال کې همدغه خانان صاحبان دي چې زموږ سره مرسته کوي او دغسې خدای خوار کړي خلک محکمې ته سپاري او هلته یې په یوه ګړۍ ورڅخه واخلي، ځکه چې په شریعت او اصولو دواړو موږ ته پړه وي او هم د خپل حاکم په خوله کې یو څه وروا چوو.

نو د دغه خان صاحب هغه ښېګڼې او مرستې چې په سوو پلا یې ستا له پلاره سره کړې دي، موږ نه شو هېرولای. که دوی نه وای او حکومت (چې د خدای د عدالت سیوري دی) نه وای، نو دا لچکانو او مزدورانو په زموږ بډایه طبقه ببخي ورکه کړې وای او نن ورځ به موږ دغه مځکې، باغونه، نغدې پیسې او جنس نه درلودای."[۸]

۳. د نورمحمد تره کي په داستاني آثارو کې د پاملرنې وړ بله موضوع دا ده چې په دغو آثارو کې د پښتنی ـ افغاني ټولنې نیمګړتیاوو، ناوړه دودونو او خرافاتو ته

ځای ځای په زړه پورې اشارې شوې دي. په دغو برخو کې کيسې او په تېره بيا ناولونه د افغاني ټولنې هغه د نادودو اړخونه بيانوي چې زياتره د ناپوهۍ او جهالت له امله زموږ په خلکو کې موجود دي. د پيرانو، صاحبزاده ګانو او اخوندزادګانو له لوري د دين او مذهب په نامه، په حقيقت کې خرافاتي اعتقادات داسې پر ټولنه اغېز لري چې يوازې جهالت، بېسوادي او بشپړه ناپوهي توجيه کولای شي او بس.

په "څړه" کې لولو:

"لو مړي ملګري يې پر راڅرغ کړ:

تاسو خو لا اوس هلکان ياست. د دنيا سړې او تودې دربانديې نه دي راغلي. دغه ډول لنګرونه زموږ او ستاسو لپاره نه دي. په دغو ځايو کې هغه چا ته خوله مړه رسېږي، څوک چې ښه او درونډ "نذر" راوړي، که څه هم زه هلته ورغلی نه يم، خو له تجربې نه دا راته معلومه ده چې هلته کار کوونکي او مزدوران له سره نه ورپرېږدي. دا د هغه چا ځای دی چې په توره غوښه پټ دي. يعني يو څه پورې ويني، نو له دغه کبله زه درته وايم چې خوشې په خوشې ځان مه سرګردانه کوئ او په خپل بهير کې سو که کښېنئ.

څرمن هم هلته نه شئ موندلای، ځکه چې په خپله د هغه او د شاوخوا کليو څړه ګان اکثره يېلې پښې په قافله کې راګډ شول. يو مزدور مې وليد چې په پښو کې يې "غر وابنه" تړلي وو. که څرمنې هلته موندل کېدای شي، نو

هغوی به ولې يبلې پښې راتلای؟

خو د تور او پز پربکړې زړونه ونه دربدل...

خر مازيګری مهال دی. دوی دواړه د اخونزاده صاحب د لنګر مخې ته راورسبدل. د لنګر د احاطې څخه دباندې، شاوخوا ته څو خره تړلي دي چې پر ځينو يې نيالی تړلې دي. دوی وپوهبدل چې پر دغو خرو يې له شاوخوا کليو څخه ناروغې بنځې، نر او کمکيان لنګر ته ددې لپاره راوستلي دي چې خورده په پوري کړي او په دې توګه يې له ناروغی څخه وژغوري.

لومړی تر هغه چې دوی د لنګر په احاطه ورکښبوزي، د يوه لوی وره په خوله کې څو کسه ناست دي. په دوی کې د يوه شناوی ږيره ده. دې سړي په دې درګاه کې خپل ټول عمر تېر کړی دی او له خورا نږدې مخلصانو او خليفه ګانو څخه دی. دغه خليفه يوې سپين سرې ښځې ته چې په خورا ادب ده ته نږدې ناسته ده او يبلې او چاودې پښې يې له ورايه ښکاره کېږي، له نورو څخه يې پلو نيولی و، خو په خپله خليفه ته يې مخ لوڅ کړی و، وويل:

ـ مبارک د خدای دومره نازورداره دی چې هره دعا يې قبلبږي. د هر ړانده په سترګو کې چې ده په اخلاص تو کړي دي، نو هغه د رب په فضل هغه آن ښه شوی دی او خورا په خوشحالی کور ته ګرځبدلی دی. پر شل چې لاس تېر کړي، سمدلاسه په پښو جګ ودرېږي، هېڅ مرض ده ته طاقت نه لري. سربېره پر دې چې ناجوړه جوړوي، په هره تنګه کې

خپلو مخلصانو مريدانو ته رسېږي. که له کوم چا څخه يې زړه ښه پوست شي او دعا ورته وکړي، خدای به ډېر شته ورکړي. پته هم ښيي. مبارک اکثره د ماخستن او سهار لمونځونه د ملايکو په جمع کې په مکه شريفه کې ادا کوي.

... په دغه وخت کې دوی غوښتل چې په احاطه شوي ځای ورننوځي، خو خليفه دوی ته لاس پورته کړ او له ورننوتلو څخه يې راوګرځول. بيا يې ترېنه پوښتنه وکړه چې په څه پسې راغلي ياست؟ او څه شی غواړئ؟ کوم وخت چې يې د دوی له وضعيت او خبرو څخه دا معلومه کړه چې څه نه په جوړېږي، نو يې لږ څه په جدي ږغ ورته وويل:

ـ دغه زلمی (پز پرېکړې ته اشاره) غواړي چې د مبارک په ارګاه کې ځان خاورې کړي، بايد وپوهېږي چې اوس منی دی، پر مبارک باندې خپل پخواني مخلصان چې له کلو کلو راهيسې دلته پراته دي او تر اوسه يې توبې قبولې شوې نه دي، بار دي. که څه هم دوی مبارک ته ښه درانه درانه کارونه کوي او د ده د ملګرو زېرمه ښه په اخلاص کوي، خو بيا هم په سړو شپو کې بېکاره وي او نس يې تاوان دی، نو ته که رښتيا برخه غواړې او دې ته دې زړه وي چې د صاحب د پښو خاورې شې، نو بايد اوس په هغه لار ولاړ شې چې باندې راغلي يې او ښې خوارۍ او زحمتونه په ژمي وکاږې، له هغې خوا د مبارک لپاره ښه سوغاتونه

راوړي. البته هغه وخت ب د ده زړه هم ښه شي او د کارونو وخت به هم وي، که دې خدای طالع لوړه کړې وي په ځلورو پنځو کلونو کې به د برخې ښتن شي.

... درې واړه د خليفه تر لاسه و پښو شول او وروسته له ډېرو زاريو يې پرېښودل... د حضور د خليفه سترګې چې پر تور او ملګري يې ولګېدلې، سمدلاسه ورته رانږدې شو او ورته يې وويل:

ـ هلکو څه ګران ياست؟ خدای دې تاسې او په مزدوره طبقه خواره کړي چې تل مو د بل کوندای (دسترخوان) ته سترګې نيولې وي. کوم وخت چې په دې لاره تېرېږئ، نو مبارک در په زړه شي، هغه هم ما ښام ته نږدې. په حقيقت کې خو خپل نس اړوئ. راشئ خدای مو ښه پرته کړه. د مبارک لاس مچ کړئ او خپلو ښيرونو ته ببرته منډې وهئ چې ستاسې لپاره دلته د شپې ځای نشته، څه مو راوړي دي چې بيا مو سپږې وګالو او يا لا نسونه درتاوده کړو..."[۱]

او يا دا چې کله په افغاني ټولنه کې خور ـ لور پر خرڅلاو او په تېره بيا د کونډې پر خرڅلاو بحث کوي، موضوع له څومره تراژيدۍ سره انځوروي:

"... نه يې کوم، مېړه نه کوم. زور او جبر ولې رابانـدې کوئ. څه ته مې له دغه خپله وطنه ورکوي او لا له خپلو ماشومانو مې بېلوئ.

زه غواړم چې پر خپل دغه يو زوی باندې سر سپين کړم.

د مېلمنو په کوټه کې څلور کسه نور ناست دي... له

وضعيت څخه دا ډول معلومېږي چې په اصل کې ټول سره خبر دي، خو خان د خبرې د شروع کېدو لپاره په دوستانه ډول پوښتنه ترې وکړه:

ـ خداى مو راولـه ستړي مه شئ. څه وخت راوسېدلاست؟ خير خو و، څنګه راغلي ياست؟ موږ څه مرسته درسره کولاى شو که يه؟

يوه په عمر پوخ سړي چې خورا غټه لنګوټه يې ول ـ ول پر سر اچولې وه، وويل:

"په دې کې څه شک نشته چې موږ و تاسې ټول پښتانه يو، خو موږ ارت غونډې يو، يعنې زموږ ځاى په (بورى) کې دى. موږ ته څو شپې پخوا ستا او د سپين د خولې څخه چا احوال راوړ چې يوه کونډه ده او غواړئ چې هغه زموږ په خوا کې خرڅه کړئ. څرنګه چې موږ ته ويل شوي دي کونډه د سپين ميره کېږي، نو موږ دا يو له هر څو سره چمتو راغلي يو. هيله لرو چې ډېر ونه ځنډول شو او زموږ کار ژر خلاص شي، ښه به وي ځکه چې وخت د غريبۍ او خوارۍ دى. هر يو خورا ډېر کارونه لري چې بايد ويې کړي. هغه بل ملګري يې پر رادرسته کړه:

"موږ غواړو چې په دې ټکي پوه شو چې دغه کونډه په غانښ څو ده، څو پلا لنګه ده؟ او هم په بده نه وي چې د هغه پېټي اندازه راته وواياست چې تاسې يې غواړئ پر موږ يې له دې درکه کښېږدئ. موږ هم غريب خلکو يو، که مو له وسه پوره نه وي چې دغه پېټې واخلو، نو څرګند ده، بې له

دې چې ځان او یا تاسو سرګردانه کړو. له دې خبرې څخه په مخ واړوو او خپله لاره به وهو.

خان: خورا تلوار مو دی، خیر دی! دا هم ستاسې خپل کور او ځای دی.

... د سپین بل داسې څوک نشته چې هغه ته دا کونډه ورکړي، نو ځکه مور په منې چې پوونده دوری درتلل احوال درولېږه چې که د چا کونډه په کار وي رادې شي. بنه شو اوس به خپله سپین درسره رغېږي.

سپین ملا صاحب ته مخ وروارړه:

ـ ته او خان صاحب زما له خوا دربمان یاست. هر څه چې تاسې سره غوټه کړه، هغه زما خوښه ده.

په دغه وخت کې یو له بوری والو څخه رغ کړ:

ـ دا لا اوس درته وایو چې زمونږ یوازې کونډه په کار ده، له چیچیانو سره یې زمونږ کار نشته. یعنې وروسته بیا دا خبرې نه منو چې دا کوچني پرتې دي او باید تر هغه وخته پورې له مور سره وي څو چې دغو یو له پښو وځي مونږ نه پردي یتیمان ساتلای شو او نه یې پر ځان چغولای شو.

د سپین مخ لږ څه سور غوندې شو او وې ویل: یه کاکا جانه! خپل یتیمان د بل چا پر اوږو نه باروو. له دې اړخه ببخي بې غمه اوسه، خو دومره راته ووایه چې کونډه چا ته کوئ؟ مېړه یې کوم یو دی؟

یوه ورته وویل چې:

ـ مېږه به يې پيدا شي، تر هر څه لومړی بايد د هغې ولور فيصله شي..."[۱۰]

دا ډول ناخوالې آن لا اوس له دغو ليکنو شا وخوا او يا کاله وروسته هم په همدغه ډول موجودې دي. زمونږ په ټولنه کې د غلاوو او قتلونو دغه جالبه صحنه څه ښه تصوير شوې ده او په ټولنه کې لا اوږده کلونه وروسته، اوس هم دغه حالات روان دي:

"د غلو مشر و نورو غلو ته وويل:

ـ ټول کالي درواخلئ او هغو اوبو ته در ځئ. هلته به د مړو او ټپيانو په جېبو، سرونځو او ملاوو کې هم وګورو، ګوندې يو څه دوايي شی نور هم مونده کړو. وروسته له هغه به په چينه اودسونه تازه کړو او بيا به لمونځونه وکړو او بيا په پسې درومو.

د چينې پر غاړه يوه ټپي چې د ډېرو دردو له لاسه يې مرګ غوښت، غلو ته د زګيروي په حال کې وويل:

ـ تاسو چې داسې کارونه او ناحقه مرګونه کوئ، بيا نو دا لمونځونه ولې کوئ؟

يو غله په خورا وچ ږغ ورته وويل:

ـ دا ناغېړي پربېږده. که دې ځان له غاړې وي، ما ته ووايه چې دستي دې له دغه عذابه خلاص کړم. ستاسې يې زمونږ په غلا او لمونځونو څه؟ خدای دې خوار کړه، ته غواړې چې ببخي (سره کافران) شو؟"[۱۱]

۴. په ځينو برخو کې غوره داستاني انځورګرۍ هم وينو. سره له دې چې دغه ځانګړنه په دغو ناولونو کې ډېره ځلنده نه ده، خو ځای ځای يې ښلګې ليدای شو. په "سنګسار" کې د کابل د زاړه ښار تصوير داسې وينو:

"په ځينو کوڅو کې پنډيان ولاړ وي او کوم سپين کالي او معتبر غونډې د دريشي وو والا خلک په يوه پنځه پولۍ د چکړو له هغو ډنډو او ولاړو اوبو څخه په شا پورې باسي چې په هغو کې تېرېدونکي تر بجلکو پورې ننوځي.

ځينې ځايونه خو د اوبو ډنډونه تر ځنګانه او حتیٰ ورانه پورې وي. هر څوک چې له شور بازار او شاوخوا کوڅو څخه د پل خشتي د ماجت په واټ راننوځي، نو يوه ژوره ساه اخلي او په زړه کې د يو ډول برياليتوب احساس وکړي او که څه هم د دې ځای د کوڅې سر پټ دی او کوڅه يې نسبت د تېرېدونکو شمېر ته خورا تنګه ده، خو بيا هم ختې او چکړې پکې لږې وي او هغه هم هغه ختې دي چې خلکو په پښو کې له شاوخوا څخه له ځان سره راوړې دي.

له پل خشتي څخه چې سړی راتېرېږي، نو د "خيابان" نسبتاً ارت واټ شروع کېږي. د دې واټ ارتوالی په ځينو ځايو کې څلور متره او په ځينو ځايو کې دوه نيم متره دی او کوږ ووږ تللی دی، خو ځکه چې سر يې پټ نه دی، نو خورا ډېرې ختې لري. د صندوق سازۍ د واټ په يوه ګوټ کې پر يو نسبتاً لوړ غونډې تهوپکي باندې يو ژړغلنې زلمی چې شل کلن بريښي، ناست دی او هر دوه درې دقيقې

وروسته په يوه خواږه غونديږغ ناره کړي:
ـ کشمش آو ، په زړه پورې کشمش آو ، وخښئ خوارو غريبه !

ده يو کوچنۍ او پلنه ډېره ترڅان لاندې کړې ده او يوه پلنه غونډې د لرګي تخته يې مخې ته ايښې ده او پر هغې يې يو څو غوريي پيالې قطار ايښې دي. په دې پيالو کې په ځينو کې لمدې سرې وځکې دي او په ځينو کې لمده کښته او په ځينو نورو کې ډول ـ ډول لمدې شوې وچې مېوې پرتې دي او په هره پياله کې يې او په اچولې دي چې رنګ يې خورا سوربخون اوښتى دى..."[۱۲]

په دې توګه د هغه په آثارو کې ځينې داسې په زړه پورې داستاني تصويرونه د سړي مخې ته دربېږي او داسې بربښې، لکه د يو فلم ننداري ته چې ناست وې. په تېره بيا د کليوالي ژوند ځينې تصويرونه لازيات په زړه پورې دي. دا د داستاني نثر په محاسنو او هنري ارزښتونو کې مهم ټکى دى.

**۵.** سره له دې چې د نورمحمد تره کي په کيسو او ناولونو کې په لومړي نظر د کرکټرونو او خبرو دننه (درون) ته ډېر نه شو متوجه کېداى، خو کله کله د خبرو ژورو او دروني ـ رواني اړخونو ته هم پام اړول شوى دى.

کله چې په "سنګسار" ناول کې ځوان "شېر" د ګلالۍ د مور له خولې اوري چې هغوى به د دوى کور ته راکډه شي او په دې توګه به نو ګلالۍ او دى هر وخت سره وويني، د

خوښۍ يو عجيبه حالت ورته پيدا کېږي او په کيسه کې د هغه رواني حالت ښه انځور بېږي:

"د ګلالۍ مور په خوارۀ او له ميني ډک رږغ ورته وويل:

ـ پر الله مې سپارلې يې، زويه! خداى دې پر ځوانۍ نور برکتونه کښېږده. د نجونو دا کوڅه او دا خونه خوښه شوې ده. هيله ده چې ژر به راکډه شو. د ها بل کور خلک هم خورا ښه او شريف خلک دي، خو دومره ده چې کور يې نم ايستلى دى او هره ګړۍ د دې وېره ده چې راباندې ونه نړېږي، خو د کور ښتن هم هر څومره چې ځغلي او منډې ترړې وهي، خو يوه يې نه دوې کېږي. لاس يې په لټې ترخولې رسېږي. دومره نه شي سپمولاى چې خپل کور په ودان کړي، پخپله دوى هم په دې فکر کې دي چې له هغه ځايه په بيړه ووځي، زموږ هم دا هڅه ده چې ژر تر ژره خپل غوږونه وباسو.

شبر پر دې وويږده چې کومه کريږه يې له ډېرې خوشحالۍ له خولې ونه وځي او په داسې حال کې چې خپله شمله يې په خوله بشپړه ننه ايستله، په بيړه دباندې راووت.

شبر دوې شپې او ورځې د ګلالۍ د کډې د راتلو په انتظار خورا ناارامې، خو ډېرې خوندورې تېرې کړې او تر سترګو يې د ګلالۍ شنه، خو زړه بوغره دورې رادورې تاوېده..."[۱۳]

۲. کومه بله خبره چې د نورمحمد تره کي په ناولونو کې

په ځانګړې توګه د غور وړ ده، هغه دا ده چې دغه ناولونه په حقیقت کې د پښتو متلونو، اصطلاحاتو، محاورو او د کلیو د نرو لغتونو غوره زېرمه ده. په دغو ناولونو کې په هر فصل او هره پاڼه کې د داسې لغتونو، محاورو او اصطلاحاتو نمونې راترسترګو کېږي. دلته یې د ناولونو له پاڼو څخه یو ازې دغه څو بېلګې رااخلو:

ـ "په دې کې تور ته دا وریاده شوه چې: "نه خر مردار بېده، نه سپي ځنې تله"، خورا خوشحاله و چې د پښو لپاره یې ښه خرمن اړولې ده. تور پر ږغ کړ:

ـ لایقه! تا خو خپلې پښې پټې کړې، اوس ستا کلفي ستن چې تل له پښو څخه ازغي په باسي ماته راکړه، ځکه چې پښې مې له ازغو ډکې دي.

پز پرېکړي... وویل: ته خو په ټولو کې پاچا یې. په تاوده کوسي کې دې کوناټي وکړل، ټوله شپه دې خرهار وي او ویده یې. موږ له سړو له لاسه اللې وهو."[۱۴]

ـ "نو ادې تاسې په خپله د پښتو دا متل هر وخت ویاست چې: "ګټه د بلا و هاخوا ته ده." او یا دا: "روپۍ تر زمینه ډېره لاندې وي". که دغه ډول خواوې او تکلیفونه ونه ګالم، نو ته وو ایه چې ژوند به څه ډول سم او خوږ شي؟"[۱۵]

ـ ښه یې ویلي دي: "سپمولي، سپو خوړلي."[۱۶]

ـ "او سنۍ زمانه خورا خرابه زمانه ده، که دې چا ته پور ورکړ، نو داسې یې وګڼه، لکه په خره سپره بدي چې رانیسې."[۱۷]

ـ "که به چا خوله سره خلاصوله او يا به يې ستا د پلار سره لاندې باندې کوله، نو سمدلاسه به يې د اسې بيزوګان د اوړو لېوان ورته جوړ کړل چې د ستي به يې لکۍ مړه شوه."[۱۸]

د نړه پښتو لغتونو په برخه کې هم دغه ناولونه د پام وړ دي او زياته زېرمه يې په خپلو پاڼو کې خوندي کړې ده.

ناولونه په پای کې د داسې زېرمو يو لړليک (فهرست) هم راغلی دی چې معناوې يې ورته کښل شوي دي.[۱۹]

لکه چې مخکې مو هم اشاره ورته وکړه، نورمحمد تره کي لنډې کيسې او ناولونه په افغانستان کې د پښتو کيسه ليکنې په تاريخي مطالعه کې له دې امله هم د پام وړ ځای لري چې د متن او محتوی له پلوه ځانګړي فکري ـ سياسي جريان ته مختص شوي دي. په دې معنا چې د شمېر له پلوه له ډېربښت سره په څنګ کې د محتوی له پلوه هم خپل خصوصيات لري او د هغه وخت د پښتو داستاني ادبياتو له نورو ډېرو نمونو سره تو پير پکې ليدل کېږي.

يو ځل بيا هم په لنډيز سره د دغو آثارو ځينو ځانګړنو ته تم کېږو:

ـ په دغو لنډو کيسو او ناولونو کې د پښتني کليوالي ژوند ښه تصوير ګري شوې ده. دغه ژوند له ټولو خوالو او ناخوالو، خوږو او ترخو سره (خو زياتره له ترخو سره) راسپړي او د لوستونکو مخې ته يې ږدي. په تېره بيا د کلي د ساده بزګرانو او مزدورانو په کړو وړو کې د صداقت او

ریښتینولي او صمیمیت غوره بېلګې را څرګندوي.

ـ په لنډو کیسو او ناولونو کې له مخکې څخه جوړې شوې کلیشې په ښکاره راتر سترګو کېږي. دغه کلیشې هم په پېښو او هم په کرکټرونو کې ځان را څرګندوي.

د کلي ساده بزګران ټول تر ظلم او ناروا لاندې دي، د ټولو ژوند خراب دی. ټول ملکان، ملایان، صاحبزاده ګان، خانان ظالمان وینې څښونکي، درواغجن او فریبکاره دي.

دا د لیکوال په ذهن کې له مخکې جوړې شوې کلیشې دي چې یوازې نومونه یې توپیر کوي او نور نو باید ټول د سره ورته ځانګړنو لرونکي وي. له همدې کبله دغه آثار د موضوعګانو او کرکټرونو له پلوه تر ډېره سره ورته دي.

ـ په کیسو کې په عمومي ډول، خو په ناولونو کې تر یو ځایه د داستان هنري ارزښتونه، تخنیکي خواوې، اوج، غوټې او د غوټو پرانیسته او پایله په دقیق ډول نه راترسترګو کېږي.

په دغو آثارو کې عمده پاملرنه د مضمون او فکري ـ سیاسي محتوی لوري ته ده او خپله لیکوال هم له خپلو لیکنو څخه همدغه هدف په نظر کې لرلای دی.

م. زرین انځور

لمنلیکونه او څرګندونې:

۱ـ اوسني لیکوال. عبدالرؤوف بېنوا ، دویم چاپ، ۱۳۸۸هـ ش. کال، علامه رشاد خپرندویه ټولنه ـ کندهار. ترتیب او زیاتوالی: مطیع الله روهیال. (۲۲۱ )م.

۲ـ سپین. نورمحمد تره کی. دریم چاپ، پښتو ادبي غورځنګ ـ کوټه،

۲۰۰۹ع. (۵)م.

۳_ اوسني ليکوال. (۲۲۲_۲۲۶)م، م.

۴_ څرہ. نورمحمد تره کی. دريم چاپ، پښتو ادبي غورځنګ _ کوټه، ۲۰۰۹ع. (۸۷_۸۸)م، م.

۵_ همدغه اثر. (۹۸)م.

۶_ د بنګ مسافر. نورمحمد تره کی، دريم چاپ، پښتو ادبي غورځنګ _ کوټه، ۲۰۰۹ع. (۸۶_۸۷)م، م.

۷_ همدغه اثر. (۱۰۲)م.

۸_ سپين. (۲۶_۲۷)م، م.

۹_ څرہ. (۳۷_۴۵)م، م.

۱۰_ سپين. (۱۰۱_۱۰۳)م، م.

۱۱_ څرہ. (۲۲_۲۳)م، م.

۱۲_ سنګسار. نورمحمد تره کی. دريم چاپ، پښتو ادبي غورځنګ _ کوټه، ۲۰۰۹ع. (۸_۹)م، م.

۱۳_ همدغه اثر. (۵۲_۵۳)م، م.

۱۴_ څرہ. (۵۰_۵۱)م، م.

۱۵_ سنګسار. (۷۳)م.

۱۶_ څرہ. (۲۱)م.

۱۷_ سپين. (۲۶)م.

۱۸_ همدغه اثر. (۳۲)م.

۱۹_ وګورئ: د نورمحمد تره کي د ټولو ناولونو وروستي مخونه

د طلعت بېګ مصداقُف د دکتورا تيزس
ژباړونکی دکتور شاه زار لېوال

# د سريزې پر ځای

د مسکو د دولتي پوهنتون د آسيا - افريقا انستيتوت د ايران - افغانستان په څانګه کې قرغز افغانپوه طلعت بېګ مصداقُف د نورمحمد تره کي پر آثارو د خپلې دکتورا تيزس ليکلی دی. زموږ په اند د ښاغلي طلعت بېګ مصداقُف د دغه اثر لنډيز به د اروا ښاد نورمحمد تره کي د لنډو کيسو په سريزه کې يو ښه پيل وي.

## د پلټنې ارزښت:

په پښتو ژبه کې د ناول ژانر، د هغه د پيدا ينښت تاريخ، د پرمختيا لارې، دوديز اړخونه او ځانګړتياوې په ننني افغانپېژندنه کې تر اوسه پورې نه دي څېړل شوي. داسې نه چې د افغانستان ټول ادبيات د ختيځ د نورو هېوادو په پرتله لږ لوستل شوي دي، خو د دغه موضوع د پلټنې چارې د ګوتو په شمار تر سره شوي دي. د يادولو وړ ده چې د افغانستان د کلاسيکو او يا ننني ادبياتو په څېړنه کې روسي پوهان لومړي دي. که څو لسيزې د مخه بهرنيو

پوهانو (د چکوسلواکیا دوکتور ایرژي بیچکا او نورو) زموږ د علاقې وړ موضوع په باره کې یو څه چارې تر سره کړې دي، خو د وخت په تېرېدو سره د دوی لېوالتیا کمزورې شوې او له منځه تللې ده. په هر حال که په لوېدیځ کې په وروستیو لسیزو کې په دغه برخه کې څه پلټنې شوې هم وي، د هغو په باره کې موږ کوم ځرک نه دی تر لاسه کړی.

د افغانستان له کلتور، په تېره بیا له ادبیاتو سره د شوروي افغانپوهانو لېوالتیا په ۱۹۴۰-۱۹۵۰ کلونو کې رامنځته شوه او د ۱۹۶۰-۱۹۸۰ کلونو په اوږدو کې پخېدو ته ورسېده. په دغه موده کې د دواړو هیوادونو د خلکو تر منځ اقتصادي او کلتوري اړیکې ډېرې ټینګې شوې او شوروي افغان پېژندنې هم چټکه پراختیا وموندله. خو د ۱۹۷۸ کال له اپریل راهیسې او وروسته بیا افغانستان ته د شوروي لښکرو لېږلو د دغو دوو هیوادو تر منځ اړیکې کړکیچنې کړلې. څه د پاسه شل کاله کېږي چې کورنۍ جګړه روانه ده، په ۱۹۹۲ کال کې د چارو واګې د مجاهدینو لاس ته ورغلې، وروسته په ۱۹۹۶ کال کې د «طالبانو غورځنګ» برې ته ورسېد چې هغوی بیا نوې ترتیبات ټینګ کړل، دغو ټولو تحولاتو د دواړو دولتونو د خلکو تر منځ د اړیکو له پراختیا سره نه یوازې مرسته و نه کړه، بلکې کلتوري تبادله او راشه درشه په ټپه ودرېده.

د افغانستان د معنوي ژوند د علمي پلټنو پیمانې په

ځانګړی ډول د ادبیاتو په برخه کې خورا لږې شوې او یوازې په دغو وروستیو وختو کې د حالاتو د بدلون هیلې راڅرګندې شوې دي.

د افغاني ادبیاتو اړوند ځینې څېړنې چې آن په هغه کړکېچن دوران کې هم ترسره شوې دي په کټورتوب او ارزښت کې یې هیڅ شک نشته، خو دغه پلټنې ډېرې لږې ترسره شوې دي چې البته نه شي کولی د دغه پراخ ډګر ټول اړخونه په غېږ کې ونیسي. نو ځکه کولای شو ووایو چې په پښتو ژبه د نثر لیکنې ژانر او په ځانګړي ډول د ناول په برخه کې آن د روسیې افغانپوهانو هم د نورو په څېر خورا لږ کار کړی دی. خو دغه ژانر چې د شلمې پېړۍ په نیمایي کې د نورو ژانرونو سره جوخت په پښتو ادب کې منځته راغلی دی او د لومړني ژوندانه ځانګړتیاوې لري، د علمي څېړنې د زیاتې پاملرنې وړ ګڼل کېږي. د پښتو ناول په خپل ژانري جوړښت کې د ودې پېچلې لاره وهلې ده، د تېر وخت د مروجو ادبیاتو او فولکلور پر بنسټ رامنځته شوی دی، چې د ګاونډیو ادبیاتو لکه (اوزبکي، ترکمني، تاجکي، په ډېر روښانه ډول د فارسي) او په دري ژبه خپرو ادبیاتو تر اغېزې لاندې یې پرمختیا او پراختیا موندلې ده. خو سره له دې یې خپلې ځانګړتیاوې خوندي ساتلې دي.

د ژانر په توګه له رمان او لنډې کیسې څخه د ناول توپیر په دې کې دی چې په ادب پېژندنه کې لږ څېړل شوی دی.

يوازې د ګوتو په شمير ځانګړې پلټنې شته، چې د ناول ځانګړتياوې يې څېړلې دي. ناول ته آن د ادبياتو په تيوري او د هغو د منځته راتلو په عمومي تاريخي آثارو کې هم خورا لږ ځای ورکړل شوی دی. د ناول د پيدا ښت او ودې په باره کې آثار د نورو ولسونو په ادبياتو کې (البته د روسيې ناول استثنا بلل کېدای شي) هم ډېر لږ دي. هغه څه چې په پښتو ادب کې د ناول د ژانر په پيدا ښت او تاريخ پورې اړه لري، نو ويلای شو چې د غه شان څېړنې په ننني افغان پېژندنه کې نه تر سترګو کيږي.

له استثنا پرته د ادب پوهنې په ټولو هغو آثارو کې چې په يو يا بل ډول په پښتو نثر پورې اړه پيدا کوي او همدا رنګه په ټولو لارښودو معلوماتي خپرونو کې هرومرو د نورمحمد تره کي له نامه څخه يادونه شوې ده. الف. س ګېراسيموه او ګ. ف. ګېرس ليکي چې: "نورمحمد تره کی په رښتيني ډول د نوي نسل ليکوالو په منځ کې لومړی ځای لري".

دا څېړونکي د ليکوال د نوښتګرې ځيرکتيا يادونه کوي او د افغاني ادب پر راتلونکې وده د ده د آثارو اغېزې څرګندوي، د ده د آثارو له خپرېدنې را وروسته (د نوې لارې) پرانيستلو، د کيسې او ناول ژانر د منځته راتلو په باره کې معلومات ورکوي. د نورمحمد تره کي د وخت او هغه نه دمخه د نوښتګرو ليکوالو د (معنوي) ارزښتونو د څېړنو په پايله کې تر لاسه شوې نتيجې دا څرګندوي چې د

نثري ناول ژانر د هغه په ننني مفهوم موجود نه و. را تلونکي شواهد دا سې ادعا کوي چې ادب پوهان په غیر مستقیم ډول نورمحمد تره کی د پښتو ناول د بنسټ ایښودونکي په توګه پېژني. خو تر او سه پورې دا سې ځانګړې پلټنې نه دي تر سره شوې چې د یادې موضوع په باره کې د تائید یا رد وروستۍ پایله په لاس راکړي.

## د مسئلې د څېړنې تاریخ:

د روسیې د افغان پېژندنې په تاریخ کې د لومړي ځل لپاره ګ. ف. ګیرس (په پښتو ژبه معاصر ادبي نثر) تر سرلیک لاندې په خپل مونوګراف کې د نورمحمد تره کي نوښت ته پاملرنه کړې ده، چې په ۱۹۵۸ کال کې خپور شوی دی. لیکوال د دغه اثر په وسیله د لومړي ځل لپاره د هغه وخت د پښتو ژبې د ښځي ځوان لیکوال د غو لنډو کیسو (بې تربیته زوی)، (د غوایي لاندې) او (دا دی خدمت) ته د روسي لوستونکو پام را اړولی دی. د هغو محتویات یې څېړلي، تشریح کړي او د دغو آثارو د ښېګڼو او نیمګړتیاوو په باره کې یې خپلځاني ارزښتونه په ګوته کړي دي او د نورمحمد تره کي له خوا د کارول شوي ادبي ژبي سپېڅلتیاوې یې ښودلې دي.

الف. س. ګراسیموواا و ګ. ف. ګیرس ګډې څېړنې کړې او پنځه کاله وروسته د (افغاني ادبیاتو لنډ تاریخ) په نوم خپرې شوې دي، چې په هغه کې نورمحمد تره کی د

لومړني ليکوال په توګه نه، بلکې په پښتو ژبه کې د نوميالي نثر ليکونکي او ماهر افغاني ليکوال په توګه روسي ژبو لوستونکو ته ورپېژندل شوی دی. دا د تعجب وړ نه ده چې دغه دوه آثار يو له بل نه په دومره لنډ واټن کې خپاره شول او نورمحمد تره کي وکولی شول چې يو شمېر لنډې کيسې او ناولونه نور هم وليکي، چې دغه کار نوموړی د افغانستان د نامتو نثر ليکونکو په ډله کې ورشامل کړ. د الف. س. ګيراسيموواو ګ. ف. ګيرس په ګډو څېړنو کې د ليکوال لنډ ژوندليک، د ده آثار او د هغو ځانګړتياوې او د نوښت اړخونه ښودل شوي دي. د کوچني شکل آثارو په باره کې مؤلفين د سوژيتي چلندونو بربنډوالی، د انځورونو او څېرو او آن د اتل د ځانګړتياوو نشتوالي ته ګوته نيولې، چې دا يا دغو آثارو ته زيات اوچتوب او يا له حده زيات احساسيتوب وربخښي. خو د (بنګ مسافري) ناول په کره کتنه کې بې له شکه د ليکوال مهارت، لوړتيا او د نوموړي په نوښت کې د رياليزم تمايلات په ګوته کوي.

زموږ په نظر د نورمحمد تره کي د نوښتګرۍ په باره کې خورا غوره کار تر همدا نن ورځې پورې د الف. س. ګيراسيموو ا (په پښتو ژبه د افغانستان ادبيات) په نوم اثر دی، چې په ۱۹۸۲ کال کې خپور شوی دی. په هغه کې د ليکوال د نوښتي لارې غوره مهالونه، د ده ليکوالي مهارت پرمختيا او پياوړتيا په ۱۹۴۰ کې د (بې تربيته

زوی) له لنډې کيسې نه بيا د نوموړي د درو نورو آثارو ("د بنګ مسافري" - ۱۹۵۸ کال، "سپين" - ۱۹۵۸ کال او "څره" - ۱۹۶۱ کال) ناولونو د خپربدو پوري څارل شوي دي. د هر يوه د مهال کره کتنه، غښتلي او کمزورې خواوې او په خپله د ليکوال د انځورونې نوښت، که د موضوع په برخه کې دی او يا هم غوره شوو ادبي چلندونو او لارو په ډګر کې دی، د الف. س. ګيرا سيموو اله خوا ښودل شوي دي. څېړونکي د پښتو ژبې په عمومي ادبي هينداره کې د ليکوال داسي رياليستي نوښتي ارخونو ته زياته پاملرنه کړې ده چيري چې نور محمد تره کی ځای لري.

په ۱۹۶۹ کال د (بنګ مسافري) په هکله په چاپ شوو مقالو کې

ک. الف. ليبيديف د لومړي ځل لپاره دا خبره څرګنده کړه چې په پښتو ژبه د معاصر ناول ليکنې بنسټ اېښودونکی نور محمد تره کی بلل کېږي. په دغو مقالو کې د ليکوال ژوندليک (بيوګرافي) او د نوموړي د ناولونو کره کتنه کښل شوې ده. ک. الف. ليبيديف په روان ادبي بهير د نورمحمد تره کي خدمتونه نه هېربدونکي ګڼي او په پښتو ادب کې يې د ناول د ژانر بنسټ اېښودونکی بولي.

## علمي نويتوب (پوهنيز نوی والی):

په وروستيو لسيزو کې د ختيځ ادب پېژندني په لړ کې د آثارو د شکل او محتوا په برخو کې کره کتنې ته

زياتـه پاملرنـه کېږي. د معاصـر نثـر ليکنـې د انځـورګرۍ لارې ځېړنـې پـه تـرڅ کـې څېړونکـو پـه غـوره ډول د واقعيتونـو د انځورولـو لپـاره د ليکـوال هڅـې سـتايلي دي. د غـه خبـره د پراخ مفهـوم پـه توګـه کارول شوې ده، چې هم د نړۍ پېژندنې روزنيـز او هـم د تنـويري ريـاليزم او همـدا رنګـه د بحرانـي ريـاليزم لارې – چـارې پـه غېـږ کـې نيسـي. د دغـو ليـدنو بنسټيز تو پيرونه سره ښېل کړل شوي نه وي.

دا ښـکاره ده چـې پـه نننـي پـړاو کـې د نړيوالـو ادبيـاتو پرمختيـا لـه يـوې خـوا او د ادبيـات پېژنـدنې پـوهې پرمختـګ لـه بلـې خـوا د څېړونکـو دا ډول انګېرنـې د قناعـت وړ نـه بـولي. پـه اتيـا يمو کلونـو کـې د لـومړي ځـل لپـاره داسـې آثـار رامنځتـه شـول، چـې پـه بشـپړ ډول يـې نوښـتي ميتودونـو او يـا ځـانګړي خـواوې کـره څېړلـي دي. خـو لکـه چې پورتـه وويـل شـوه دا ډول پلټنـې تـر اوسـه پـورې ډېـرې لـږې شـوي دي او د پښتو ادب پېژندنې په لړ کې ښخي نشته.

د دغـه دوکتـورا د تيـزس د ليکنـې لپـاره شـوي پلټنـې د روسـيې او نړيـوالي افغـان پېژنـدنې آثـارو پـه تـاريخ کـې لـومړنی کـار دی، چـې پـه ځـانګړي ډول پـه پښـتو ژبـه کـې د نـاول د ژانـر پيدايښـت او وده بيـانوي. پـه روسـي ادب پېژندنـه کـې د نـامتو افغـان نثـر ليکـونکي نورمحمـد تـره کـي د نوښـت، د ادبـي چلنـد مشخصـات، ځـانګړي رياليسـتيک ميتـود، دوديـز او د نوښـتګرۍ نـوي ځانګړتيـاوې پـه بشـپړه توګه څېړل شوي دي.

## تحقیقاتي موضوع:

د نورمحمد تره کي نثري ادبي آثار د څېړنې اساسي موضوع ګرځېدلې ده. په پښتو ادب کې د دغو آثارو ځای همدا رنګه په نړیوالو او ختیځو ادبیاتو کې د رامنځته شوي ناول لیکنې وده او پرمختیا او په ځانګړي ډول د دودونو له مخې پښتنو ته ورته او نږدې اولسونو د ادبي بهیر پرمختیا د څېړنې بله موضوع ده.

د نثري ژانر په توګه د ناول ژوره هراړخیزه څېړنه د هغه ځانګړتیاوې، چې د منځني شکل ادبیاتو ناول لیکنې مشخصات جوړوي، د منځني او نږدې ختیځ د یو شمېر هیوادو د خلکو په ادبیاتو کې د دغه ډول ژانر پیدا ښت او همدا رنګه په دغه ډګر کې د نورمحمد تره کي د نوښتي میراث څېړنه د تحقیقاتو اصلي دندې ګڼل کېږي. په دې اړوند کولی شو څو ټاکلي دندې په دا ډول بیان کړو:

د نړیوالو ادبیاتو په تاریخ کې د ناول د ژانر د رامنځته کېدو او د ناول د ژانر د ځانګړتیاوو تیوریکي ثبوت پر بنا موضوعات داسې څېړل کېږي:

- له نورمحمد تره کي څخه مخکې د پښتو ژبې په ادب کې د ناول د ژانر د پیدا ښت د تاریخچې لنډه شننه.
- د نورمحمد تره کي د نوښتي لارې څېړنه.
- د ناول د ژانر په توګه د نورمحمد تره کي (د بنګ مسافري)، (سپین)، (خره) او (سنګسار) د آثارو تحقیقات او څېړنه.

د دوکتورا د تيزس د دفاع لپاره غوره مواد په لاندې ډول وړاندې کېږي:

۱. ناول د نثر د ژانر په توګه خپلې جلا ځانګړتياوې لري.

په افغاني ادبياتو کې د نورمحمد تره کي په شان شخصيت له هغه نه مخکې په پښتو ادب کې د ناول د ژانر د نننې مفهوم په توګه رامنځته شوی نه و.

د نورمحمد تره کي (د بنګ مسافري)، (سپين) او (سنګسار) آثار د ادبي ژانر په توګه د ناول بشپړې ځانګړتياوې لري.

له دې کبله نورمحمد تره کی د پښتو ژبې د معاصر ناول ليکنې د بنسټ ايښودونکو په ډله کې راتلی شي.

## علمي ارزښت:

د دغو پلټنو پايلې کېدای شي په راتلونکي کې د پښتو ادب او افغان پېژندنې په چارو کې وکارول شي. دغه پايلې د پښتو ادب تيوري او تاريخ بشپړوي، چې کېدای شي د نژدې او ليري ختيځ ادبياتو په ډګر کې د مونوګرافونو، درسي کتابونو او لکچرونو لپاره وکارول شي.

## د دوکتورا د تيزس تصديق:

د څېړنو غوره تيزسونه په دغو خپرونو کې څېړل شوي دي:

د ټول شوروي ښوونځي ښوونځي د ځوانو ختيځ پوهانو تيزسونو مجموعې په لومړي ټوک کې د "نورمحمد تره کي د نوښتي ميتودونو په باره کې"، پنځمه خپرونه، په ۱۹۸۹کال کې د شوروي سوسياليستي جمهوريتونو اتحاد د علومو اکاډيمۍ د ختيځ پېژندنې انستيتوت تحقيقاتي مقالې، چې "نورمحمد تره کي په پشتو ژبه د ناول د ژانر بنسټ ايښودونکی دی" او د "نورمحمد تره کي په آثارو کې نوښتي چلندونه" چې په "د ختيځ خلکو دودونه او رواجونه" نومې مجموعې لومړۍ خپرونه په بشکيک کې د ختيځو ژبو او کلتورونو انستيتوت له خوا په ۲۰۰۰ م کال کې خپرې شوي دي.

پر دغه تيزس د م. و. لومونوسوف په نوم د مسکو د دولتي پوهنتون د آسيا او افريقا د انستيتوت د ايراني ژبو په څانګه کې بحث او دفاع شوې ده.

## د تيزس ساختمان:

تيزس سريزه، څلور برخې (فصلونه)، پايله (اختتاميه) او يوه ضميمه لري، چې په هغې کې د نورمحمد تره کي د آثارو بشپړ ليست او کتابتون ښودل شوی دی او څه د پاسه سلو کتابونو نومونه په روسي، پښتو او اروپايي ژبو کښل شوي دي.

د تيزس په سريزه کې د مضمون ارزښت، د پلټنې موضوعاتو او موخې (هدفونو) د تيزس د کار، ميتوديکو

بنيادونو، علمي نوښت، د مسئلې څېړنې د تاريخ او د تحقيقاتو کاري (عملي) ارزښت په باره کې خبرې شوي او همدارنګه د تحقيقاتو غوره موخې (هدفونه) او مسئلې ټاکل شوي دي.

لومړۍ برخه (فصل): "د ناول ژانر او په نږدې او منځنې ختيځ هيوادونو کې د هغه رامنځته کېدل" په نوم ياد يږي. لومړنی پروګراف "ناول او د ادبي ژانر دور" نومېږي، چې د ناول د ژانر تيوريکي مسئلې څېړي. په هغه کې د ناول د نننۍ ادبپوهنې له خوا منل شوی تعريف او د دغه ژانر غوره داسې ځانګړتياوې ښودل شوي دي چې د هغه له نورو ژانرونو لکه رومان، کيسې او داسې نورو څخه په پرنسيپي توګه بېلوي.

- ناول د منځنۍ کچې (حجم يې ټاکلی نه دی) ادبي ټوټه ده، چې نه دومره ستره او نه ډېره کوچنۍ وي.

- ناول د معمول له مخې يو لوری لري، چې ټولې خبرې د يوازيني سړې په ګرد چاپېره يعني د اصلي اتل پر سر رواني وي.

- خو له کيسې نه د ناول توپير دا دی چې په ناول کې د ځو تنو کارونه بيانېږي.

- په ناول کې د پېښو لړۍ د هغو د پېښېدو په ترتيب ښودل کېږي.

- په ناول کې د اتل د شخصيت د پرمختيا او بدلون خوځندتوب (ديناميک) د ليکوال له خوا نه ټاکل کېږي، بلکې

هر و مرو په خپله د ناول د اتل په وسيله ښودل کېږي.

- د ناول يوه غوره او ځلانده ځانګړتيا د هغه کلتوري - تاريخي وضعي انځور دی، چې پکښې دا ډول پېښې تېرې شوي دي.

په دغه پوره ګراف کې د ژانر په توګه د ناول راز راز تيوريکانې بيان شوي او د ناولونو يو شو موجود ډولونه ښودل شوي دي.

دويم پروګراف "د نړۍ د ادبياتو په تاريخ کې د ناول د ژانر پيدا ايښت" نومېږي، چې د اروپا او امريکا په هيوادونو کې دغه ژانر د منځته راتلو تاريخ بيانوي. دا سي پايلې ته رسېږي، چې ناول د نننی ژانر په توګه په اتلسمه پېړۍ کې په فرانسه کې منځته راغلی دی او د اتلسمې په پای او نولسمې پېړۍ په سر کې روسي ادب ته ولېږدېدی، چې لومړی زده او وريسې وکارول شو. بيا يې د پرمختيا پېچلې خو په زړه پوري لاره يې ووهله. د شلمې پېړۍ په پيل کې د لوېديځ په نننيو ادبياتو کې د ناول ژانر خورا زيات رواج وموند.

دريم پروګراف "په نژدې او منځنۍ آسيايي هيوادو کې د ناول ژانر منځته راتګ ډېر وروسته په شلمه پېړۍ کې اتکل کوي. ويل کېږي چې دغه ژانر د ختيځ ادب ځانګړتيا نه لري. دلته څرګند دويم ځای لري (يعني د لوېديځ تر اغزې لاندې راغلی دی)، د لومړۍ برخې په دريم پروګراف کې د هغو خلکو په ادبياتو کې د ناول د ژانر پيدا ايښت بيان

شوې دي چې کلتور او ادب يې پښتنو ته ورنژدې دي او د
چا ادبياتو چې پر پښتني ادب اغېزه ښندلې ده. دغه
فارسي -تاجيکي ادبيات دي، چې په افغانستان کې په
فارسي او دري ژبو خپاره شوې دي او يا هم د اوزبکو او
ترکمنو اولسونو ادبيات.

دويمه برخه (فصل): په پښتو ادبياتو کې د ناول ژانر د
پيدا ايښت تاريخچه او ځانګړتيا بيانوي. لومړی دا چې په
لنډ ډول هغه لار په ګوته کوي، چې د شلمې پېړۍ تر
نيمايي پورې د پښتو نثر وهلې ده او په دغه مهال کې
نورمحمد تره کي د ادب ډګر ته راوتلی و او بل د دې لپاره
هڅې شوې دي، چې د کلاسيک او ننني پښتو ادب غوره
دوديزې برخې د دې لپاره رابرسېره کړي، چې د نورمحمد
تره کي د نوښت په چارو کې يو شمېر دوديزو تمايلونو
ونډه هم وڅېړي. لومړی پروګراف "د پښتو نثر د پرمختيا
غوره مهالونه" نومېږي. په دويم پروګراف کې مسئله په
تفصيل سره څېړل شوې ده، ځکه د دغه ژانر په برخه کې له
نورمحمد تره کي تر مخه هم د پښتو اديبانو له خوا هڅې
شوې دي. په دې برخه کې د پښتو ادب ټوله هغه نامتو آثار
په لنډ ډول کتل کېږي، چې د شلمې پېړۍ تر ۱۹۵۰ کلونو
پورې منځته راغلي دي او د ناول ژانر په ډله کې شمېرل
کېدای شي، لکه د برهان الدين کشککي "پته مينه"، د
محمد رفيق قانع "دوه مين ورونه"، د عبدالرؤف بېنوا "د
وطن مينه" د غلام رحمان جرار، د محمد نادر ايوبي

"سپين او مرغلره". د محمد دين ژواک "د توان وروستۍ شپه" او د غلام غوث خيبري تاريخي ناولونه څېړل شوي دي. د دغو آثارو ښېګڼې او نيمګړتياوې ښودل شوي دي، چې زيات شمېر يې دومره هنري ارزښت نه لري.

د دغه فصل په پايله کې داسې نتيجې ترلاسه کېږي، چې په پښتو ادب کې د ناول د ژانر د پرمختيا لاره په دري - فارسي او همدارنګه د منځنۍ آسيا د نورو اولسونو په ادبياتو کې د دغه شان ژانر له پيدايښت او پرمختيا سره زيات ورته والی لري. د ټولو يادو شوو خلکو په فرهنګ کې ناول د پر وروسته (په شلمه پېړۍ کې) رامنځته شوی او د ادبي ميتود له مخې د لوېديځ تر څرګندې اغېزې لاندې راغلی، رياليستي او تنويري خصلتونه يې سره ګډ شوي او د پرمختيا چټکه لاره يې وهلې ده. که څه چې د نور محمد تره کي د آثارو څخه دمخه ليکل شوو پښتو ادبياتو کې د ناول ژانر لپاره هڅې شوي دي او د دغه ډول ادبي ژانر د راتلونکي ودې لپاره زمينه برابره شوې ده، خو له پورته يادو شوو مؤلفينو له ډلې نه يو هم په دې نه دی بريالی شوی چې دغه ژانر پوره خپل او وکاروي.

دريمه برخه (فصل): "نور محمد تره کی ليکوال او سياستوال دی". په دغه برخه کې د لومړي افغاني پياوړي ليکوال بيوګرافي او د هغه د نوښتګرۍ لار په هراړخيز ډول بيان شوې ده. د بيوګرافۍ لومړی پروګراف د

"نورمحمد تره کي د ژوند لاره" نومېږي.

دويم پروګراف "د نورمحمد تره کي کيسې" نومېږي، چې د نومړي د نوښتګرۍ د کوچني ژانر آثار پکښې څېړل شوي دي. په دغه ځای کې د ليکوال د نثر ليکنې د نوښتې لارې د پرمختيا تاريخ له لومړني ساده آثار (بې تربيته زوی) (د ۱۹۴۰ کال چاپ) له کيسې نه نيولی بيا تر هغو پياوړو او ژورو آثارو پورې څېړل شوي دي، چې د شلمې پېړۍ د پنځوسمو کلونو په پای کې خپاره شوی دی. لا د لومړنيو ساده کيسو په آثارو کې د ليکوال د نوښتي ميتود غوره ځانګړتياوې ځرګندې بربښي. د نمونې په توګه د مستندتوب، د پوهېدو وړتوب، د ژبې او هم د بيان له مخې د ورځپاڼې مقالې ته نژدېوالی، د نومونو، خبرو، خويونو، ادبي تړتو او انځورونو، د زيات شمېر رقمونو د راوړلو او داسې نورو شتوالی يادولی شو. محققين د همدغو ځانګړتياوو پر بنياد د نورمحمد تره کي لومړني آثار که نيمګړتياوي لري، خو ښېګڼې هم لري.

نورمحمد تره کی په پښتو ادبياتو کې لومړی ليکوال دی، چې د بزګرانو ژوند ته يې پام اړولی دی او د افغانستان د غريبانو د ژوندانه کړاوونه يې په ريښتونې او پوهېدنې وړ ډول انځور کړي دي. که د دغو آثارو له نيمګړتياوو تېر شو، د نومړي کيسې په رښتيا سره رياليستي آثار بللی شو. خو دا هم بې له شکه د يادولو وړ ده چې دغه آثار د رښتيني رياليزم پوخوالی نه لري، ځکه

چې په هغو کې تنویري برخه شامله شوې ده. مګر بیا هم نورمحمد تره کي مخکیني آثار د پښتو ادب په پرمختیا کې ټاکلي ونډه لري. پر لوستونکو یې زیاته اغېزه وښندله او د افغانستان د کلتور د تاریخ په پرمختیا کې یې زیات رول ولوبولو. دا خبره هم د تیزس لیکوال او هم نور روسي محققین تاییدوي.

څلورمه برخه (فصل): په دغه برخه کې د نورمحمد تره کي ځانګړي ناولونه لکه (د بنګ مسافري)، (سپین)، (ځړه) او (سنسګار) څېړل شوي دي. د ادبي ژانر په توګه د هر یوه ناول ځانګړي مشخصات په تفصیل سره تحلیل شوي دي.

د نورمحمد تره کي لومړی ناول (د بنګ مسافري) په ۱۹۵۸ کال چاپ شوی دی. ناول د هغه د اتل ځوان بزګر بنګ په نوم بلل شوی دی، چې د مجبوریت له مخې له خپل کوره وتلی او د مزدورۍ لپاره ښار ته تللی دی. منی و، چې له خپل کلي ووت او له کاروان سره ښار ته روان شو. ژمی یې په کندهار کې تېر کړ. لومړی ورځې مزدور و بیا د نساجي په فابریکه کې کارګر شو او وروسته د بډای په کور کې نوکر شو. پسرلي ته بیرته خپل کلي ته راستون شو.

د دغه کتاب یوه غوره ښېګنه دا ده چې لیکوال د هغه وخت افغانستان ټولنیز انځور ډېر بډای او رازراز ښودلی دی. د الف. س. ګیراسیموو او د وینا له مخې چې وایي: "نورمحمد تره کي په دې بریالی کېږي، چې ټوله

افغـاني ټولنـه پـه زغـرده لـه زيـاتو خـوارو نيـولې بيـا تـر لـوړو قشرونو پوري پوره انځور کړې".

بزګـــران، کوچيــــان، ملايـــان، ملکـــان او خانـــان، ســـوداګران، داړه مـــاران، کـــارګران، مـــزدوران، د کارخـــانو خاونـدان او د دوی د کـورنۍ غـړي، د بـډايانو پـه کورونـو کـې نفـر خـدمتان، د روښـانفکرانو اسـتازي، د غـه ټـولي ډلـي او د دوی خبـرې د نـاول پـه پـاڼو کـې د لوسـتونکو مـخ تـه ودرېـږي. يـو چـا تـه يـوازي اشـاره شـوې ده، ځينـي نـور پـه تفصـيل سـره پـه رياليسـتيک ډول بيـان شـوي دي. خـو ليکوال دغـو ټولـو تـه پـه يـو ډول نـه يـو ډول پاملرنـه کـړې ده. پـه هغـو کـې يـو شـمېر ډلـې لکـه کـارګران او کوچيـان د لـومړي ځـل لپـاره يـاد کـړی شـوي دي. د دغـه بلـه بېلـوونکې نښـه دا ده چـې پـه هغـه کـې د لـومړی ځـل لپـاره د اعتصـابونو او مظـاهرو بيان شوی دی.

د (بنـګ مسـافري) کتـاب ژوره ملـي بڼـه لـري. ليکـوال د افغانـانو دودونـه، د دوی کـالي، د هسـتوګني ځايونـه، د ژوندانـه نـور زيـات شـمېر واقعيتونـه او همدارنګـه د نـاول د اتـل د کـړو وړو داسـې اوضـاع ښـودلې ده چـې هغـه تـه ملـي رنګ بخښي.

د دغـه کتـاب د بېلېـدونکو ځانګړتيـاوو پـه شـمېر کـې د يـادولو وړ خبـره دا ده چـې پـه سـاده او روانـه ژبـه کښـل شـوي دي، جملـې يـې لنـډې او روانـې دي. د ختـيځ ادب پـر خـلاف پېچلـې او کړلېچنـې خبـرې نشـته. چـې بـې لـه شـکه دغـه د

نورمحمد تره کي د نوښتي میتود بدعت (نوی والی) بلل کېږي.

څېړونکي د نورمحمد تره کي بل نوښتي بریالیتوب دا بولي چې ده هڅه کړې چې بیان ته ژوندی او ریالیستیک خصلت ورکړي. البته د لیکوال دا ډول هڅه لا پوره نه ګڼل کېږي او (د بنګ مسافري) کتاب په هیڅ ډول ژور روحیاتي اثر نه بلل کېږي. خو د اصلي اتل د جوړوني دینامیک د ټول ناول په کښلو کې په بشپړه او ژوره توګه شوی دی.

لوستونکو ته بنګ د ناول په پیل کې ساده او کمکی کلیوال ځوان ښودل کېږي او د کیسې په پای کې هغه داسې رسېدلي شخصیت ته اوچتېږي، چې د راتلونکي روښانه ارمان لپاره مبارزه کوي. خو هغه ته د لیکوال له خوا د غه شان ښه دومره د انځورګرۍ په وسیله نه ده ورکړل شوې، لکه څومره چې د ښکلا د ارزښتونو او اندونو په وسیله جوړه شوې ده. دا خبره په اختتامیه لیکنه کې ښه څرګنده ښکاري، چې په ۱۹۷۸ کال کې خپره شوې ده. د غه شان اختتام د ناول لیکنې منطقي بشپړتیا نه، بلکې یو ډول ایدیولوژیکي بلنه (شعار) بریښي.

د اصلي اتل د دغه شان څېرې دا ځانګړتیاوې د عمومي دندو په وسیله پوره تشریح کېږي. د ګیراسیموا په وینا بنګ د لیکوال لپاره د ده د پخوانیو کیسو (آثارو) د نورو اتلانو په شان یو فرد نه دی، بلکې داسې ټولنیزه څېره ده،

چې د ده (د ایډیالي غړ او چمتووالي) رول هم لوبوي.
محققین د غه ناول په ټولنیزه برخه کې د افغاني نثر خورا مهم آثار بولي. الف. س. ګیراسیمووا لیکي، چې: "په افغاني ادبیاتو کې د غه شان بل اثر نشته، چې د افغاني ټولنې د لوستوالو قشرونو په منځ کې یې د انقلابي - دیموکراتیکې اندېښنې په راپارولو کې یې دومره مهم رول لوبولی وي".
ثو ځلې د څېړونکو لخوا (د بنګ مسافري) زیات ریالیستیک خصلتونه په ګوته شوي دي، خو روزنیز ټکی هم پکښې سته، چې د تنویري ادبیاتو مشخصه جوړوي. تصادفي نه ده، چې د دویم چاپ په سریزه کې راغلي دي، چې ناول د دې لپاره کښل شوی دی، چې "ځوانانو ته له طبقاتي جغ نه د ژغورنې لاره وښیي او په ټولنه کې طبقاتي شعور راویښ کړي".
هیوادوالو (د بنګ مسافري) ډېر لوړ ارزیابي کړی دی. افغاني لیکوال محمد دین ژواک د هغه ریالیزم په ګوته کوي او وایي چې په هغه کې د افغاني ټولنې د ژوندانه ټول اړخونه انګازې کوي، دی او حبیب الله تږی لیکي، چې د غه ناول په لیکلو سره نورمحمد تره کي له خپل وخت نه مخکې شو.
د څېړونکو دا نظر دی چې (د بنګ مسافري) د نورمحمد تره کي د لیکوالۍ مهارت د پرمختیا ښکارندوی دی. خو د غه کتاب ځینو نیمګړتیاوو ته هم

ګوته نيسي. د مثال په توګه په ناول کې د دويم رول لوبوونکو کسانو تثبيت او ښودلو ته لږه پاملرنه شوې، چې د ژوندي کرکتر لرونکو په توګه رول نه لوبوي، بلکې د (فعالو خبرو) يو ډول سمبول جوړوي، چې د ټاکلي اند ښننې پېټې وړې د الف. س. ګيراسيموا او ګ. ف. ګيرس په نظر "سره له دې چې تيپيکو اوضاعو په انګازه کولو کې زيات برياليتوبونه د ليکوال په برخه شوي دي، خو ناول د دغه نيمګړتيا لرلو له مخې د پرله پسې رياليستيکو آثارو په توګه نه شي ګڼل کېداى".

که دغه کتاب ځيني کمزوري خواوې لري، خو د ښېګڼو شمېر يې زيات دی، لکه د واحد سوژيت لاره، د تاريخي مهال سره سم د پېښو بيان، د اصلي اتل د کرکتر د پرمختيا ديناميک، د دويم رول لوبوونکو کسانو د شمېر زياتوالی، د کلتوري-تاريخي حالاتو رښتوني او ژور انځور، د کتاب د متن منځنۍ کچه او هم د ښودل شوو پېښو منځنۍ پنډوالی د دې ښکارندوی دی، چې د نورمحمد تره کي (د بنګ مسافري) کتاب د کلمې په ننني مفهوم د ناول د ژانر په ډله کې وشمېرل شي.

د نورمحمد تره کي دويم کتاب د (سپين) په نوم دی، چې په همدغه ۱۹۵۸ کال کې خپور شوی دی. د کتاب موضوع د کورنۍ د مشر له مړينې څخه وروسته د زيات شمېر ميراث خوارو ترمنځ د شتمني وېش دی، چې د اصلي اتل په توګه د هغه مشر زوی منفي رول لوبوي. د ده

ښېره بدلون نه مومي، د مخکني کتاب د اتل بنګ پر خلاف د سپين شخصيت د کيسې تر پايه پورې بدلون نه مومي او وده هم نه کوي. سپين د کيسې له پيل نه تر پايه پورې هماغه شان چالاک، درواغجن، غولوونکی او ظالم پاتې کېږي او بس.

د کليوالي ټولنې د نورو درو تنو لکه خان، پير او ملا د ښېرو تر منځ بېلتون دومره زيات نه ښکاري. ملا په ښکاره ډول د ناوړه خدمتګار په توګه غندل شوی دی، داسې درواغجنې او غرضي روحاني ښېرې جدي انتقاد شوی دی، چې د شريعت احکام د فساد او ستم وسيلې ګرځوي.

د بزګرانو په اړوند هم د پرنسيب له مخې ځينې نوي عناصر ځای کړل شوي دي. په ناول کې ډله ييزې او هم ځينې انفرادي ښېرې يوازې د مظلومي طبقې د استازو په توګه نه، بلکې د ربښتوني شخصيت په توګه تبارز کوي، چې ښېګڼې او نيمګړتياوې لري او يوازې عمومي ټولنيزې ځانګړتياوې نه لري.

د ناول په کرښو کې د بزګري پاڅون وېره هم بيان شوې ده. سپين د دغه پاڅون يادونه کوي او ډارېږي او همدارنګه خان او ملا هم په دغه باره کې اند ښنه ښودلې او څو ځلې يې د بزګرانو د پاڅون يادونې کړې دي.

د نورمحمد تره کي د (سپين) په نوم ناول ښکاره ټولنيز خصلت او زور انتقادي اړخونه لري، چې د رياليستيکو آثارو ډېرې ځانګړنې پکښې سته. ځکه چې واقعيتونه په

ریښتوني او عیني ډول پکښې بریښي. په ډېرو ځرګندوونو کې د ملا د کالیو په انځورولو، د ژوندانه د وسیلو، دودونو (د تدفین او تکفین مراسم، د متلونو کارول، "د څراغ شا وخوا رڼا او د څراغ لاندې ځای تیاره ده") په ښودلو سره د ناول ملي لومړنی ژوند روښانه بریښي.

د هغو هنري میتودونو د ځانګړتیاوو یادونه هم ضروري ګڼل کېږي، چې د هغو په مرسته نورمحمد تره کي د (سپین) ناول کښلی دی. دلته هم لکه د (د بنګ مسافرئ) په کتاب کې د (تنویري ریالیزم) ځانګړتیاوې جوتې ښکاري. په ناول کې رښتیانی او رنګ شوی ریالستیک انځورونه شته، چې په عمومي توګه ناول دودیزه روزونکې ځانګړنه غوره کوي. د (سپین) په ناول کې نه یوازې د پښتو، بلکې هغې ته نژدې ادبیاتو دودیزې برخې شته. که څېرې د فارسي لیکوال صادق هدایت د (حاجي آقا) کتاب له سپین ناول سره پرتله شي، د موضوع، د اصلي اتلانو د کرکټرونو او همدارنګه د هنري وسیلو د کارولو له مخې یو له بل سره ورته والی لري.

هغه څه چې د (سپین) له ترتیب او تنظیم سره اړه لري، ځرګندېږي چې دومره غښتلې نه ده. د ناول بیان په دیالوګ بدلېږي او د لیکوال یادونې ډېرې لږې دي. ګیرا سیمووا لیکي: "هوکې، کوم عمل هم نشته، بې پایه خبرې دي. د ټولو پېښو په هکله، چې په دغه تنګ کلیوال چاپېریال کې رامنځته شوي دي لوستونکی یا د ژوندي دیالوګ له لارې

يا د اتل له خاطراتو او يا هم د ناول ليکونکي د يادونو په وسيله خبرېږي. د ناول وروستۍ پاڼې کټ مټ د نظم په څېر کښل شوي دي: عمل کوونکي سرې ټاکل کېږي، او نبغ په نبغه هغه خبرې کېږي، چې کله کله د ليکوال تشريحات هم ورسره مل وي".

د موضوع تنظيم هم يو څه کمزوری ښکاري. ناول ته د کوم يوه اتل نوم ورکول، دا انګېرنه رامنځته کوي چې هغه به مرکزي څېره وي او د اثر ټولې پېښې د هغه پر ګرد چاپېره منظمې شوي وي. خو دا ښېخې دا ډول نه ده. نږدې په نيمايې خبرو کې سپين برخه نه لري. نو داسې ويل کېدای شي چې د ناول اصلي اتل ميراث دی، نه د بډای مشر زوی.

د شک نه وتلې خبره، دا ده چې د (سپين) کتاب خورا په ساده، ټولو ته د پوهېدو وړ، دقيقه، ځيرکه، روانه او سوچه ژبه کښل شوی دی چې دا د دغه اثر يو له غوره ارزښتونو څخه دی.

په عمومي ډول د نورمحمد تره کي د (سپين) کتاب د ادبي ځانګړتياوو له مخې د نومورې (د بنګ مسافري) له کتاب يو څه وروسته پاتې کېږي، په هر صورت په ډاډ سره ويلای شو چې په کتاب کې د ناول د ژانر د ځانګړتياوو او مشخصاتو په شته والي کې شک نه شته.

هغه څه چې په موضوع پوري اړه لري، ښکاره ده، چې يوه واحده سوژه کارول شوې ده، مګر پوره دقيقه نه ده ترتيب شوې. پېښې هغومره د يوه اتل د برخليک په

شاوخوا پراختيا نه مومي، څومره چې يوه په بله پسې د تاريخي مهال په ترتيب راغلي دي، د پېښو منځ ته راتګ په خپله له سپين سره کومې اړيکې نه لري. بلکې په هغه ميراث پورې اړه لري، چې هم خان، هم ملا او هم پير ورته سترګې نيولي دي. ويلای شو چې دغه ناول لږ تر لږه درې اصلي اتلان لري، چې د کتاب د عمومي مفکورې انګازې پکې ښکاري او ليکوال هغه بيانوي. خو د دويمې درجې رول لوبوونکي څېرې پکښې لږې نه دي، چې ځانګړي کرکترونه او خصوصيات يې غوره کړي دي.

په دې کې شک نشته چې د نورمحمد تره کي د ناول يوه غوره ښېګڼه دا ده چې په رښتيني او رياليستيک ډول هغه کلتوري – تاريخي حالات بيانوي چې پېښې پکې رامنځته شوي دي. الف. ن. فيدرووا دغه آثار دا ډول ښودلي دي چې "ليکوال له کليوالي مشرتابه نه پرده پورته کوي، او ښيي چې خانان، ملايان او ملکان او نور د شتمنوالي ګډه هوس لپاره په څومره مهارت سره د شريعت احکام کاروي".

د (سپين) ناول د حجم له مخې منځنی کچه لري، دا سې برېښي چې په کتاب کې کښل شوي پېښې د څو اوونيو په موده کې راغلي دي.

د پورتنيو يادونو پر بنسټ دا سې پايلې ته رسېږو، چې د نورمحمد تره کي د (سپين) کتاب د اصلي ځانګړنو له مخې د ټولنيزو ناولونو په ډله کې شمېرل کېږي.

لیکوال: د ژبپوهنې پروفیسور کانستانتین لېبېډېف
ژباړونکی: ډاکټر شېرحسن حسن

# نورمحمد تره کی،
# په پښتو ژبه کې د هنري ناول بنسټ ایښوونکی:

نورمحمد تره کی د ۱۹۱۷م کال د جولای په ۱۲ نېټه د غزني د مقر ولسوالۍ په یوه کلیوالي بزګره کوچۍ کورنۍ کې زېږېدلی دی.

"د اوسني لیکوال په روایت، ښاغلی تره کی د ۱۹۱۷کال د اکتوبر په ۲ په میمنه کې زېږېدلی دی[1]".

لومړنۍ زده کړې یې د مقر په یوه کلیوالي ښوونځي کې تر سره کړې. وروسته بیا کندهار ته ولاړ او هلته په (پښتون) شرکت کې په کار وګومارل شو. په ۱۹۳۵زیږدیز کال په بمبیي کې د (پښتون) شرکت د نمایندګۍ منشي وټاکل شو. په ۱۹۳۷-۱۹۳۹م کلونو کې یې لومړی په سوداګرۍ وزارت او وروسته بیا په کانو او صنایعو وزارت کې کار کاوه. په ۱۹۴۰م کال کې یې د «اقتصاد»

---

[1] بېنوا، عبدالرؤف، ۱۹۲۱، کابل، لومړی ټوک، ۱۸۰ مخ.

مجله چلوله او د ۱۹۴۱م كال راهيسې يې په كابل راډيو، باختر آژانس او فوايد عامې وزارت كې دندې تر سره كړې دي.

د ځلوبښتمو كلونو له پاى څخه نورمحمد تره كي په ټولنيزو ـ سياسي چارو لاس پورې كوي. هغه د (ويښ زلميانو) د سازمان د مركزي هستې له فعالينو څخه و. د دغه سازمان د فعاليت اساسي كربښه د فيوډالي بقاياوو پر ضد مبارزه وه. په دې وخت كې نورمحمد تره كي د هيواد په مطبوعاتو كې د داسې يو دموكراتيك حكومت په طرفدارۍ غږ پورته كوي، چې ولسي جرګې ته مسئوليت ولري. هغه د ۱۹۵۱م كال د مارچ په ۷ نېټه په (انګار) اخبار كې ليكي: "د هر هيواد د ټولنيز ژوند او ثقافت د سطحې د لوړولو لپاره بايد مختلفې لارې چارې په كار واچول شي. له دغو لارو چارو څخه يوه په سياسي، اقتصادي او ټولنيز ژوند كې د خلكو د پراخو پرګنو فعال ګډون دى. كه زموږ ولس د سياسي مخكښو رسمي ګوندونو په مرسته يو ځاى شي، په لږ وخت كې به د هغو ملي اهدافو په تر سره كولو برى و مومي چې زمانې زموږ د هيوادوالو په وړاندې ايښي دي".

نورمحمد تره كي د همدې اخبار د ۱۹۵۱ زېږديز كال د اپريل د لومړۍ نېټې په ګڼه كې د سياسي ګوندونو د تشكيل او آزاد فعاليت غوښتنه كوي او د اپريل پر ۱۵مه نېټه بيا ليكي: "موږ د خلكو د حكومت د جوړولو د

ضرورت په باب خبرې کولې چې ولسي جرګې ته مسئوليت ولري". هغه بيا ادامه ورکوي او داسې سوال طرح کوي: "تر کومه به مورډ د سياسي ګوندونو او ولسي حکومت د ګټو او ښېګڼو په باب خبرې کوو؟ دا چې هغوی د خلکو د ګټو او غوښتنو منعکس او مدافع دي هر چا ته په کافي اندازه څرګنده ده او چا ته د شک او ترديد ځای نه پاتې کېږي. اوس نو د دې وخت رارسېدلی دی چې راپاڅېږو او د خپل هېواد د نېکمرغۍ د پاره په کار پيل وکړو، ميدان ته ور ودانګو او د پرګنو ځواک ته انسجام ورکړو. خو دا کار يوازې د سياسي سازمان او ګوند په ايجاد سره تر سره کېدای شي". له همدې وخته د يوه سياسي ګوند د تشکيل لپاره د نورمحمد تره کي د سياسي هڅو، جد و جهد او مبارزې لړۍ پيل کېږي.

د ۱۹۵۳ زېږديز کال په مارچ کې نورمحمد تره کی د امريکا په متحده ايالاتو کې د افغانستان د سفارت د مطبوعاتي آتشې په توګه وټاکل شو. خو د خپلو مترقي نظرياتو د څرګندولو په وجه د همدې کال په پای کې بيرته له واشنګټن څخه کابل ته راوغوښتل شو. هېواد ته له راتګ څخه وروسته په کابل کې د يونسکو مؤسسې منشي او يو وخت يې بيا په همدې مؤسسه کې د ترجمان په توګه دنده تر سره کوله. ده په عين وخت کې په ادبي او سياسي فعاليتونو کې هم ونډه درلوده. د همده د نه ستړي کېدونکي او پرله پسې فعاليت نتيجه وه چې په ۱۹۶۵

زیږدیز کال کې د افغانستان د خلکو دموکراتیک ګوند منځ ته راغی. لومړۍ مؤسسه کنګره د همده په کور کې جوړه شوه. په دې کنګره کې نورمحمد تره کی د ګوند د عمومي منشي په توګه وټاکل شو او د ۱۹۶۲ کال په اپریل کې د (خلق) په جریده کې د ګوند مرام خپور شو.

نورمحمد تره کی نه یوازې د افغانستان د یو وتلي سیاسي شخصیت په توګه نامتو دی، بلکې هغه یو بااستعداده لیکوال او په پښتو ژبه کې د لنډ هنري داستان او ناول د رامنځته کېدو نوښتګر او بنسټ ایښوونکی دی. نورمحمد تره کي خپل ادبي فعالیت د لنډو کیسو له لیکلو څخه پیل کړ. له دې کیسو څخه لومړۍ یې په ۱۹۳۰ زیږدیز کال په (کابل) مجله کې خپره شوه. په دغو لنډو کیسو کې لیکوال د وخت د شاهي واکمنۍ په دور کې د هیواد د زیارکښو بزګرانو ژوند ته انعکاس ورکوی.

له همعصره نامتو افغاني لیکوالو په توپیر د نورمحمد تره کي په لیکنو کې د سوژې یوه ټاکلې لیکه مخته ځي چې د لنډو کیسو قهرمانانو یې د کرکتر ټاکلي رنګونه خپل کړي دي. دغو ټولو لنډو کیسو (د بنګ مسافري) د نامتو ناول لیکلو ته لاره هواره کړه چې لیکوال ور په کې د یوه پاخه نثر لیکونکي په څېر داسې وځلېد چې د مورنۍ ژبې د هنري ښکلا په راز او رمز پوره لاسبری و. (د بنګ مسافري) د ناول سوژه ساده او روښانه ده. دغه ناول د هغه د قهرمان (بنګ) په نامه یاد شوی دی چې د خپل پلرني

کلي نه د ښار په لور د کار او مزدورۍ په پيدا کولو پسې وځي.
(بنګ) د غزني نه تر کندهاره پورې ستونزمنه او اوږده لاره په ډېرو ستونزو وهي، هم د لارې په اوږدو او هم په کندهار کې د بېلابېلو درجو او منصبو د واکدارانو سره مخامخ کېږي او هر څه ورته نا آشنا دي. که د دې ناول د قهرمان سفر تعقيب شي نو لوستونکی د افغاني ټولنې د مختلفو قشرو او طبقاتو بزګرانو، کوچيانو، سوداګرانو او ښاري کارګرو د ژوند سره پوره آشنايي پيدا کولای شي. دلته ليکوال د افغاني ټولنې د ټولو طبقاتو د ژوند رښتينې منظره جوړوي. داسې څرګندېږي چې نورمحمد تره کی نه يوازې د ساده وګړو په مزاج او دهغوی د ورځني ژوند په راز او رمز له نږدې پوهېده، بلکې د شتمني طبقې د ژوند سره هم پوره اشنا و. د دوبې په پيل کې د جنوبي لمر په سوځوونکو شغلو او د دښتو په تودو بادونو کې افغاني کوچيان له جنوبي او جنوب ختيځ سيمو څخه د شمال پر لوري کوچېږي. تر دې وخته پورې د دغو کوچي وګړو ژوند (چې تر دې وخته پورې يې شمېر درې مليونه و) په هنري ادبياتو کې انعکاس نه و موندلی. نورمحمد تره کی لومړی پښتو ليکوال و چې د کوچي وګړو ستونزمن ژوند يې په خپلو هنري ليکنو کې په رښتينې بڼه ترسيم کړ. د ولس خبرو ته نژدې ژوندۍ او روانې ژبې، د داستان د قهرمانانو د اخلاقو، حرکاتو او

ښپړو ښه معرفت او د کليوالي رواجونو او مزاجونو ښې
پېژندګلوۍ، ليکوال ته د دې امکان ورکړی دی چې د
کوچي کاروان د تګ لاره تعقيب او ربښتينې ښکلې هنري
منظره ورڅخه جوړه کړي. تره کی د کوچيانو د ترخه ژوند
مادي اسباب راسپړي، د دوی د حقوقو د تلف خبرې کوي
او په سوداګرو او مالکينوپوري د دوی د ژوند د حالت
تړاو روښانه کوي. ليکوال د وړاندې شوې مسئلې د يوه
انځورګر په توګه د کوچيانو تياتوبي ته د سوداګرو راتګ
او د دوی له خوا د چور په دود په ډېره ټيټه بيه د ځايي
خلکو څخه د وړيو او نورو محصولاتو رانيول او د کوچي
وګړو دفاعي او حقوقي محروميت انځوروي. ليکوال په
دغه ناول کې خپل لوستونکي د ناول د قهرمان سره يو
ځای تر کندهاره رسوي. هلته د (بنګ) لپاره نوی ښاري
ژوند پيل کېږي چې د کليوال وګړي لپاره ډېر ناآشنا دی.
هغه ته هر څه نوي او نابلد ښکاري او هر شی د هغه په ذهن
کې حيرانتيا زېږوي. په ښار کې د (بنګ) د ژوند په تعقيب
کې نورمحمد تره کی ښار ته په مزدورۍ پسې د راغلو
کليوالي وګړو ژوند انځوروي، هغه وګړي چې تر اوسه
کارګر او کسبګر نه دي، دوی لا تر اوسه له کلي سره خپلې
روحي اړيکې نه شکوي، دوی له يوې خوا ځانونه تر اوسه
په هماغه کليوالي ژوند او ځمکه پوري تړلی بولي چې
دوی په خپله ورڅخه محروم دي، خو له بلې خوا هلته د ټولو
محروميتونو سره سره دوی خپلو کليو ته د ستنېدو فکر له

خپلـو سـرو څخـه ځکـه نـه باسـي چې هلتـه يـې کـورنۍ او خپلوان پاتې دي.

د پخـو او دايمـي کـارګرو ژونـد بيـا بـل ډول دی. هغـوی پـه ورځنـۍ مزدورۍ کې همدومره څه پيدا کولی شي چې خپله ګـوزاره يـې وربانـدې وشـي او لـه لـوږې مـړه نـه شـي. د کورنيـو لپـاره د خرڅـې د پيـدا کولـو خيـالي هيلـې د پـوره کېـدو وړ نـه دي. د ښـار همـدا ډول ژونـد دی، د فـابريکو خاونـدان پـه ډېـرو کمـو پيسـو کـارګران کـار تـه ګومـاري، ځکـه چـې د کـار لپـاره د مجبـورو کـارګرانو شـمېر خـورا زيـات دی. هـر يـو پـه دې ډارېږي چې لـه کـاره بـه وشـړل شي او بيا بـه بېکـاره پـاتې شي. خـو د ټولـو سـتونزو سـره بيـا هـم د (بنـګ) سـره بخـت يـاري کـوي او پـه فابريکـه کې د ميخانيـک د شـاګرد پـه حيـث کـار پيـدا کـوي. هغـه د خپلـې خوښـې اصلـي کـار پيـدا کـړ او لـه همـدې وختـه د هغـه پـه ژونـد او شـاوخوا د شـيانو او حوادثـو پـه بـاب د هغـه پـه تصـوراتو کـې بنيـادي بـدلون رامنځتـه شـو. هغـه نـور داسـې نـه ولکـه د اول ځـل لپـاره چـې لـه کلـي څخـه ښـار تـه راغـی. هغـه نـوره پـه مسـتقله توګـه زده کـړه پيـل کـړه او کتابونـه يـې لوسـتل. ليکـوال د (بنـګ) د تصـوراتو پرمختـګ او شـعوري تکامـل پـه دې کـې وينـي چـې دی څنګـه د نـورو کـارګرانو سـره اړيکـې پيـدا کـوي او د هغـوی پـه مظـاهراتو کـې ګـډون کـوي. د دغـه نـاول پـه پـای کـې (بنـګ) د يـوه کـارګري ګونـد غړيتـوب تـرلاسه کـوي او پـه خپـل هيـواد کـې د نوي ژوند د جوړښت لپاره فعال مبارز ورڅخه جوړېږي.

نور محمد تره کي د لومړی ځل لپاره په افغاني ادبیاتو کې د افغانستان د زیارکښې طبقې د ژوند، حقوقو او طبقاتي غوښتنو په خاطر د هغوی مبارزې ته انعکاس ورکړ. په پنځوسمو کلونو کې د نور محمد تره کي د دې ناول خپرېدل د افغاني ادبیاتو په ژوند کې یوه برجسته پېښه وه. په پښتو ژبه کې یو رښتینی، هنري ریالستیک ناول را دمخه شو چي په پښتو ژبه او د افغاني ادبیاتو په تاریخ کې یې نوی باب پرانیست.

تر دې وروسته نور محمد تره کي د بل هنري اثر (سپین) په لیکلو پیل وکړ. په دې اثر کې لیکوال په کلیو او بانډو باندې د برلاسي کلتور او مزاج انځور باسي او د (سپین) په نامه د یوه محلي فیوډال حرص، ورسترګې، ټګماري، حیله ګري، مضریت او بد چلند تمثیلوي. (سپین) په خپل مضریت کې یوازې نه دی. د کلي ملک، پیر او ملا هم د ده په شان دسیسه کار او حیله ګر دي، چې د غوړې مړې لپاره په هر ډول انساني، مذهبي او اخلاقي اصولو باندي پښو ایښودلو ته تیار دي. همدوی د کلي واکمنان دي چې د استبداد او تورو تاریکو ښه نمایندګي کوي.

دا ناول د خپلوانو او اقاربو تر منځ د میراث په تقسیم د شخړې او د ټولو انساني حقوقو څخه د بې برخې کونډې ښځې د حالت یو عجیبه انځور دی. (سپین) د ملا په خبرو پای ته رسېږي، چې خان ته داسې خطاب کوي:

"کور دې ودان چې زما خبره دې نرمه ومنله، زه به سپين هم دغه کار ته چمتو کړم او ډېره هيله ده چې هغه هم دغه خبره ومني، په دې دوستۍ کې زموږ او ستاسې خورا ډېرې ګټې دي که څه هم موږ وتاسې د يوې ډلې خلک بلل کېږو او ګټه مو سره شريکه ده او په دغو موقتي خوابديو موږ نه سو سره جلا کېدای خو بيا هم دغه مازې د طبيعت خړوالی به هم له منځه ووځي، او په دې توګه به اوپره خلک او بزګران زموږ او ستاسې له اختلاف او بې اتفاقۍ څخه ګټه وانه خيستلای شي ".

د نورمحمد تره کي بل ناول (څړه) هغو بې برخې او مسکينو وګړو ته ځانګړی شوی دی چې په خپل محل کې کار ورته نه پيدا کېږي او مجبور دي چې د يوې مړۍ ډوډۍ د پيدا کولو لپاره ګاونډيو ملکونو ته مسافر شي او د ځان او کورنۍ لپاره آذوقه او نفقه برابره کړي. خو داسې چانس ټولو ته نه برابرېږي او ډېر يې لکه د ناول د قهرمان (تور) په شان خالي لاس کور ته راستنېږي، ځکه په لار کې ډېر خنډونه او ممانعتونه موجود دي چې تېربدل او د ځان ژغورل ورڅخه مشکل او غير ممکن کار دی. په دغو مسکينانو د هر چا لاسبر دی. غله، ډاکوان، د ګمرک او مالي مامورين او نور د دوی د سفر پيسې او د خوراک شيان ورڅخه لوټوي. لوټماران او غله هم له مجبوريته چور او غلا کوي. د هغوی مشر مسافرو ته وايي: "څړه ګانو ! بخښنه به راته کوئ، موږ هم مجبور يو، خپلو عيالو او

کهولو په سر را اخيستي يو. ډوډۍ غواړي، نفقه غواړي، که نه وي مور هم ښه پوهېږو چې دا کارونه ناروا او ناوړه دي، خو د رب دربار لوی دی ګوندي توبه مو قبوله شي او مو بخښي. تاسو ته دې خدای په کوز ملک کې ښه خواري درمونده کړي او کوم وخت چې له هغې خوا راځي نو يقين دی چې زموږ غوندې غله به مو نه شکوي. خپل مړي ښخ ګړئ خدای دې پرې ورحميږي".

ليکوال په خوږه روانه ژبه د هغو سيمو د طبيعي ښکلا انځور باسي چې د ناول قهرمان (تور) د هغو په اوږدو کې سفر کوي. د ناول په ټول اوږدوالي کې د ساده ولس بې چاره، او بې دفاع ژوند ښودل شوی دی او ليکوال د زيارکښ ولس د ژوند په حالت باندې خپل نظر هم څرګندوي. هغه د کيسې د يوه لوبغاړي (ژيړګل) کارګر په خوله خلک د نېکمرغه او متمدنه ژوند لپاره په هلوځلو کې يووالي او وحدت ته رابولي او وايي: "د کار په وخت کې دغه ډول يووالی او ملګري لا نوره ګټه هم لري: ټيکه داران به څه راته ويلای نه شي او حق به مو نه شي خوړلای، که يې چيرته په کوم ملګري تېری کاوه، سمدلاسه به کار ورخوشې کړو او ټول به په يوه پلا له کار څخه راووځو چې البته هغه وخت به د ظالم سرته سد ورشي او دستي به له ناروا کولو څخه لاس واخلي. که چيرته ټول کارکوونکي سره يوځای شي – وپوهېږئ! چې ټوله نړۍ به د دوی شي او ټول هغه لېوان چې د انسان په جامو کې ښوري- ورک شي

او دا خو جوته خبره ده چې کارکوونکي او اوپره خلک که نن وي که سبا تول به یو موټی شي او هغه وخت به د دوی توره شپه په رڼا ورځ واوړي ".

(ژیړګل) په بل ځای کې خپلو کارګرو همکارانو ته وايي: "دغه ترتیب یوازې په ټیکه دارانو او جمعه دارانو کې نه دی. دغه نور خلک لکه بډایان، د ډیرو مځکو څښتنان، د فابریکو خاوندان، واکداران او داسې نور هغه کسان چې پخپله کار نه کوي او د نورو په زحمت او خواریو باندې ژوند کوي- تول د اوپره خلکو په مقابل کې چلونه وهي او دوی په ډول ډول خبرو غولوي او د دوی ګټې ترېنه تروښوي. موږ کارکوونکي به تر هغو د ښادۍ په نرۍ ونه خېژو، تر څو چې د دغسې لېوانو او مفت خورو په مخ کې یو موټی نه شو. خو موږ ځکه دړې وړې یو چې زموږ د ډلې یا طبقې ضمیر نه دی راویښ شوی او په خپله ګټه او تاوان خبر نه یو. دا پورته طبقې تل د اوپره خلکو طبقه یا ډله پخپله د اوپره خلکو پر ضد استعمالوي. دلته د پښتنو دغه متل څومره ښه او پرځای معنی ورکوي چې وايي (ونې ونې! کهې به له تا څه غوښتل؟ که يې لاستی نه وای ستا له کونې). تاسې که لږ څه ښه ژور فکر وکړئ نو به خبره نوره هم درته څرګنده شي ".

د نورمحمد تره کي څلورم او آخري ناول (سنګسار) نومبړي چې په ۱۹۷۹ کال له چاپه راووت. د حجم له مخې (د بنګ مسافري) له ناول څخه لوی دی، په هنري تول کې تر

ټولو لوړ ځای لري او د اجتماعي او ايديولوژيک ارزښت له مخې د پښتو ژبې د هنري ادبياتو په تاريخ کې بې ساری دی. (سنګسار) د لومړي ځل لپاره په بربنډه رښتيا په روحاني جامه کې د پوښلو مرتبو او غيردولتي منصبونو اصلي ماهيت او محتوا رابرسېره کړه. نو ځکه د (سنګسار) خپرېدل د افغاني ټولنې په ادبي ژوند کې د ستر اهميت وړ ګڼل کېږي.

(سنګسار) په بنسټيز ډول د ساده وګړو مذهبي تلقين او شعور ته وقف شوی دی. په هغه کې د نالوستي او ساده ولس وروسته پاتې والی، جهل او ناپوهي، مظلوميت او بې چون و چرا اطاعت څرګند شوی دی. ليکوال دا خبره روښانه کوي چې څنګه د خلکو د پاکې ديني عقيدې څخه د واکدار رژيم او د هغه سره د تړلي روحانيت د قدرت او سلطې د ټينګښت لپاره کار اخيستل کېږي.

د دې ناول ژبه ژوندۍ ده. په هغه کې ګڼ شمير ژيړ-زرغونه رنګونه کارېدلي او په تشبيهاتو، او څرګندولو کې د طبيعت او ښاري کوڅو ښکلی انځور تر بې جوړ سوی دی. د ناول په ټول جريان کې لوستونکي د بې دفاع وګړو په مقابل کې د شتمنو د نامردۍ، رياکارۍ، منافقت او حيله ګر شيطانت سره مخامخ کېږي. دلته ليکوال د مذهبي پوليس (محتسب) رښتيانۍ څېره ترسيموي. چې د ناول اصلي لوبغاړي (شبر) ورسره کوڅه په کوڅه ګرځي او په ديني او مذهبي مکلفيتونو د خلکو پابندۍ څار کوي.

هغه په دې برخه کې ټولواک دی او هغه چا ته په خپل سر جزا ورکولی شي چې د لمانځه په قرائت کې یې کوم ټکی ناسم وي او یا د لمانځه په وخت جومات ته نه حاضرېږي. هغوی د مقدسو آیاتونو تر اثر لاندې په دمونو او تعویذونو د کلي ساده خلک غولوي او ځان ورته د هرې بلا بلاګردان جوړوي. په ناول کې د (شبیر) زوی ناروغېږي، (شبر) ډاکټر ته نه ځي او ملا ته د تعویذ لپاره مراجعه کوي چې د ده په عقیده د ده زوی د تعویذ په برکت جوړ شي. ملا هغه ته یو مغلق تاو راتاو او پېچل شوی کاغذ ورکوي چې ګویا دا تعویذ د هرې ناروغۍ دارو دی، خو تعویذ تاثیر نه کوي او (شبر) د لوړې مرتبې بل ملا ته مراجعه کوي چې ښه تعویذ ورته ورکړي. دا ملا هم بې له دې چې له ځایه وخوځېږي په کاغذ کې کوم څه لیکي او د مقدس تعویذ په نامه یې (شبر) ته ورکوي، خو د (شبر) په زوی دا تعویذ هم اثر نه کوي او په پای کې د ناروغۍ د شدت له امله ژوند له لاسه ورکوي. دا پېښې ټولې د هیواد په پایتخت کابل کې تر سره کېږي. دلته (شبر) پښېماني ښکاره کوي او افسوس کوي چې ولې یې زوی ډاکټر ته د تداوۍ لپاره نه دی ورښکاره کړی. ملایان پر (شبر) باندې دین ته د سپکاوي تومت لګوي او پر هغه د ملحد، دهري او بې دینه په نامه غوغا جوړوي ځکه چې هغه ګویا د زوی تر مړینې وروسته پر دوی بې باوره شوی دی او له دې جهته یې مذهب ته سپکاوی کړی دی. خو ددې خبرې کوم ثبوت یا شاهد

موجود نه دی او محتسب يې بايد په هر قيمت چې کېږي د ده ګناه پيدا کړي. نو مذهبي واکداران د (شېر) د پلار د بېسوادۍ، ساده ګۍ او ړندې عقيدې څخه استفاده کوي، کله غوړه مالي ورسره کوي او کله زور ورښکاره کوي او ورته وايي چې دی بايد (شېر) مجبور کړي چې په ناکړې ګناه اعتراف وکړي. ورته ووايي: "يا به د زوی خوا نيسي او يا به د دين! بله چاره نه لرې، د خدای د رضا لپاره ته بايد د زوی څخه انکار وکړې او زموږ سره مرسته وکړې. ته بايد پخپله هيله وکړې چې (شېر) په کانو وويشتل شي، دا به د اسلام د ترقۍ او غوړېدو سره مرسته وي. آيا ته په دې نه پوهېږې چې د خدای دوستان د عقيدې لپاره د هر څه قربانۍ ته حاضرېږي، نن د دې قربانۍ لپاره ستا نوبت رارسېدلی دی".

"د اسلام خادمان"(؟) او مذهبي حاکمان په هر قيمت کوښښ کوي چې (شېر) ته د "شريعت د قانون"(؟) سره سم جزا ورکړي او په دې ډول نورو ځوانانو ته د ډار او وهم درس ورکړي، چې عقيدې يې خرابې نه شي او د مستقل فکر کولو نيت له سره وباسي. دلته د هغوی غوښتنه ترسره شوه.

د (شېر) پلار (شېر) ته وايي: "ته اقرار وکړه، که ګنهکار هم نه يې، اقرار وکړه، بيا به توبه وباسې او وبه بخښل شې. بله چاره نشته. ټول ټينګار کوي چې ته بايد اقرار وکړې او توبه وباسې. ټول ښار مشوش او هيجاني

دی اقرار وکړه او توبه وباسه ! دا تا ته څه تاوان نه لري ".

د کابل د ښار دغه پېښې د واکمنو له پامه پټې نه پاتې کېږي، هغوی په ځير سره د واقعاتو جريان څاري او په حکومتي مقاماتو بېره کوي چې ژر تر ژره دې د (شريعت) (؟) د احکامو سره سم (ګنهکار) په سزا ورسول شي. د ناول په پای کې څرګنده شوې ده چې څرنګه په مذهبي عقيده کې ګنګس او ګيچ شوی ولس يو بې ګناه انسان تر بېرحمانه سنګسار لاندې وژني او په عين وخت کې هغه چا ته دعاوې کوي چې د نورو د عبرت لپاره يې د دغه ملحد(!) د سنګسار او اعدام امر کړی دی. تر ټولو پيران او ملايان ډېر خوشحال وو.

تر نورو يو ژبه ور ملا د (شبر) د سنګساربدو په ميدان کې داسي وعظ کاوه: "ژوندی دي وي زموږ ګران ټولواک. دی خورا ښه ټولواک دی. زموږ د ښځو مخونه يې بېرته پټ کړل. د ډيرو مکتبونو ورونه يې چې هلته د دنيا علم پکې زده کېده وتړل. شريعت په خورا ښه توګه جاري دی. د دين د ساتلو له پاره يې دغسې لوی خدمت وکړ او زنديقي يې مردار کړ ".

د ناول د پای کرښې د خاصي پاملرنې وړ دي، کله چې "شبر" سنګسار او جسد يې په کاڼو کې پټ شو، نو يو ځوان چې ظاهري بڼه يې د لوستي او تعليم يافته په شان ښکاربده په خپل څنګ کې دوو ولاړو زلميانو ته وويل: "دغه خوار او بېوزلی ددې له پاره قرباني شو چې د خپلې

پـاچهی ستنې پـه ټینګـې کـړي". لـه دوو اوربـدونکو څخـه یـو تـن پـولیس تـه ورغـږ کـړل خـو ویـونکي پـه بېـړه د خلکـو د ګڼې ګونې په منځ کې ځان ورک کړ.

پـه پـای کـې د دې خبـرې یـادول ضـروري بـولم چـې د نورمحمـد تـره کـي آثـارو پـه پښـتو ادبیـاتو کـې نـوې لار پرانیسـته چـې د انتقـادي ریـالیزم لار بلـل کېـږي. پـه افغـاني هنـري نثـر کـې دغـه نـوی لـوری کومـه ناڅـاپي پېښـه نـه وه، بلکې د ژوند پخه شوې غوښتنه وه.

د نورمحمـــد تـــره کـــي آثـــار او لنـــډ داســـتانونه لوسـتونکي پـه یـوه ځـانګړي دوران کـې د افغـاني ټـولنې د ټولـو طبقـاتو او قشـرونو، لـوی اکثریـت سـاده وګـړو، شـتمنې طبقـې او مـذهبي روحانیـت د ژونـد، مفکـورو، اندېښـنو او نظریاتو سره آشنا کوي.

ک. ا. لېبېدېف
مسکو ۱۹۰۰۰۰ کال

# موچي

ژړ سپېره مخ د عمومي بازار د پليو لارې پر يوه لانده ځای لمر څريکې (پيتاوي) ته نا اميده غونډې ناست دی.
هر څوک چې تېرېږي دی يې وار دواره پښو ته ګوري، چې ګوندې کېږي (پڼې) يا ګوتونه يې څيرې وي، چې ده ته يې د ګنډلو لپاره ورکړي. پر دوو تلو چې زنګنونه يې خولې ته رارسېدلي دي او خپله زنه يې د دواړو زنګنو په منځ کې اېښې ده، ناست دی. په دې چې نن ساړه لږ دي خورا خوشحاله دی او هره ګړۍ لمر ته په خورا مينه سترګې وراړوي خو پلوشې يې سترګې وربرېښوي او بېر ته يې پټې کړي.
په دې وخت کې يو سپين کالی سړی چې خورا اوږد کميس يې اغوستی دی او تکه سپينه پګړۍ يې پر سپينه رخچينه تړلې ده راغی. په ده پسې څلور، پنځه کسه سپين کالي نور هم شته. د موچي حد ته چې راغلل، نو سمدلاسه يې پښه ونيوله. يوه يې بل سړي ته مخ وروا ړاوه او ورته ويې ويل "خان چې وربښمېنې کېږی (موچنې) راته راوړې دي هغه بايد دغه موچي ته ورکړو چې ښه تلې پر ووهي ".

ملګري يې ورته وويل: "ښه دی ! " او بيا روان شو. اداري ته چې ورغی ډېر خلک ورته ولاړ شول او هر يوه په احترام ورته وويل: "مفتي صاحب دې ستړی نه وي، خدای دې راوله ! ستا د عدالت سيوري دې زموږ له سره نه کمېږي ! ستا تشريف راوړلو ته مو سترګې څلور شوې ! "

بيا د غه صاحب پر يوه پنډه نيالۍ چې تور بخن کشميری پوښ يې دی او د قلم په ډول ډول رنګونو ځای په ځای رنګېدلي ده، کښېناست. د ده خوله پټه وه، خو کوچنۍ غوندې خوله يې په شناوې ږيره کې له ورايه ښکارېده، په پوزه ډېر تنفس کوي، سترګې يې تل غټې غټې راختلې وي.

نيم ساعت وروسته يې هغه کېپې د ده حضور ته راوړې، چې موچي تلي پر مېخ کړي وو.

د ده چې پر کېپو سترګې ونښتې، نو يې وويل:

"خدای دې تا محرر خوار کړي ! تا خو به موچي ته ويل چې ښه ډېر مېخونه پر ووهي. موږ پر دغه کېپو څونه سپين تور او تور سپين کړي دي خو بيا هم تا ښکلې او ټينګې نه دي جوړې کړې.

ورشه ! موچي ته يو سپاهي ورواستوه چې دلته راشي چې پخپله هدايت ورکړم".

سپاهي موچي پر اوږه باندې په خپل ورځخه لنډې لرګي وواهه او ورته ويې ويل چې ورسره ولاړ شي او د کېپو د جوړولو هدايت واخلي.

موچي ورته وويل چې زما ښځه خو دغه سندان، څټک او مېخونه پر ډکر پاتېږي. زه درسره تلای نه شم، هر څه چې غواړې، دلته به يې وکړم خو سپاهي د ده خبرو ته غوږ و نه نيوه او په زوره يې کش کړ. ده ورنږدې هټۍ والا ته وررنغ کړ چې د ده پر شيانو پام کوي.

موچي په دې خورا خوابدی شو چې په پورې وهلو يې راووست. ده په زړه کې جوړه کړې وه چې د سپاهي له لاسه به عرض کوي، چې ولې يې په دغسې وهلو او ترټلو راووست، خو چې د مفتي صاحب سترګې وربانـدې ونښتې سمدلاسه يې په ښکنځلو خوله پورې کړه.

ده چې خپل ښکنځل خلاصول، نو يوه تنده نس غوندې سړي په درد او عتاب موچي ته وويل:

"ته خبر نه يې چې دا د چا موچنې دي؟ د علماوو خو خلک د پښو خاورې کېږي، خو تاسې جاهلان د مزدورۍ په مقابل کې هم د دوی کار سم نه کوئ، بلا دې پر دغه سپېره او بې ويني مخ شه! خدای د خپلې کلپې ايداد (جزا) پخوا لا درکړی دی، په دې چې دغسې يې خوار او بدبخته کړی يې".

موچي ژړغونکی غوندې شو او ورته ويې ويل:

"د دوو افغانيو په مقابل کې همدغه کار کېده چې ما وکړ، نو په دغه پيسو خو به مې کور نه درجوړاوه، که مو خوښ نه وي، زه به خپل تلي او مېخونه بيرته وکاږم، بل موچي ته يې وروړئ چې ښې يې درجوړې کړي، زه يو خوار

او غریب سړی یم، په سپاهي مو ولې پورې وهلم؟"

د مفتي طبیعت سمدلاسه پربله واووښت او په یوه ږغ سره یې وویل: "دغه سپین سترګی او بې حیا وباسئ! زه به د دغې بې احترامۍ ایداد ورکړم".

موچي په منډه خپل ځای ته راغی. ده غوښتل چې خپل سامان راټول کړي او یوې بلې خوا ته ولاړ شي، خو سمدلاسه دوه درې سپین پګړي طالبان چې مفتي وراستولي وو پسې راغلل. یوه طالب لومړی ټولې خبرې او بل طالب وارد واره موچي ته ښکنځل وکړل او بیا یې په خپله موچنه پر سر وویشت او ورته ویې ویل: "دغه موچنه به جوړوې!"

موچي هم خورا ډېر عصبي شو او ځکه چې په اصلي مطلب یې خبر نه و، نو یې همدغه ډول ښکنځل طالب ته وکړل، طالبانو سمدلاسه راکش کړ او د محکمې خوا ته یې ځکاوه، پر لارې به یې هر چا ته ویل چې دغه موچي موږ ته د خولې او سر کفر ویلي دي، قاضي ته یې بیایو چې یو څه ایداد ورکړي.

موچي یې لومړی مفتي ته ورووست، د ډېرو خلکو په مخ کې طالبانو عرض پر وکړ چې: "دغه جاهل د خولې او سر کفر ورته ویلي دي". مفتي سمدلاسه قاضي ته ورغی، طالبان او موچي یې ور وړاندې کړل.

ټولو طالبانو په یوه خوله ږغ کړ چې: "هو صاحبه! موږ ته یې سر او خوله راوښکنځل". مفتي هم د دوی خبره تائید

کړه او ورته ويې ويل: "صاحبه! که ده ته جزا ور نه کړې، نو په علماوو به تل ملنډې وهي او د شپې تېر به پر ودربړي".

قاضي سمدلاسه امر وکړ چې موچي دې نهه د برش دُرې ووهل شي، پر خره دې مخ توری چپه سپور شي او په بازار دې وګرځول شي، چې دغه کار د نورو عبرت شي او بيا څوک سپين پګړيو ته په سپکه سترګه و نه ګوري.

د قاضي امر مفتي تطبيق کړ او موچي يې نهه د برش کلکې دُرې وواهه.

ځکه چې موچي د وهلو په اثر پر خره نه شواى کښېنستلاى، نو د خره د اړخو سره يې لرګي وتړل او بيا يې موچي پر هغه باندې کلک وتاړه او شريعت يې پر وچلاوه.

دغه موچي تر هغه وروسته چې د دُرو په اثر يې دوې درې مياشتې ناجوړي وزغمله او بيا په ډېر حسرت پسې مړ شو، نو د شاوخوا دوکاندارانو به ويل چې دغه موچي ته علماوو ښېرا کړې ده.

۱۳۳۵ کال، د جدي لومړۍ –
۱۹۵۶ع کال ډسمبر

# په پای کې بډای شو

کـروړ خـوارکي نـه پـه آسـمان کـې سـتوری او نـه پـر ځمکـه سیوری درلـود. پـه خپـل کلـي کـې یـې د شـپې تېـر ودرېـد او مـخ پـر ښـار روان شـو. ده لـه کلـي بیـا تـر یـوه ښـاره ټولـه لار پـه لوڅـو پښـو ووهلـه. د ده پښـې پـرښـه غونـدې وې، اغـزي او تېـرې ډبـرې پـر هغـو هـیڅ اغېـزه نـه شـوه ښندلای. بې لـه یـوه ړانګـې ړانګـې خت او پرتـوګ څخـه یـې بـل هـیڅ شـی نـه درلـود. د منـي وچـو سـړو دغـه بېـوزلی لکـه نـور پـه میلیونـو وګـړي تـک تـور اړولی و.

کـروړ دوه نـیم سـوه میلـه مسـافه پـه اوو، اتـو شـپو کـې پـر پښـو ووهلـه. پـه لار یـې د شـا او خـوا پـه کلیـو کـې مړی غوښـته او پـه دې توګـه یـې خپـل وږی نـس پـه خـورا تکلیـف او زحمـت مړاوه. هـر کلـي تـه چې بـه وررورسېد، پوښتنه بـه یـې وکـړه چې کـه څـوک مـزدور پـه کـار لـري، نـو هـر چـا بـه ورتـه ویـل: "یـه وروره! د دې ځـای مـزدوران پخپلـه د نـس اړولـو لـه پـاره کـوز ملک ته شیوه شوي، نو تا ته به څه مزدوري درکړلای شو؟"

مقصـد دا چې تـر لویـو ښـارو پـورې یـې کـار میندہ نه کړ او پـه خـورا ناامیـدی یـې دا لار ووهلـه. پـه ښـار کـې هـم لـه څـو

ورځـو سـرګردانيو وروسـته د يـوه پښ مـزدور شـو. مـزدوري چـا نـه ورکولـه، فقـط پـه نس مـزدور شـو، خـو هغـه هـم څرنګـه دوډۍ؟ پـه لـږه مـوده کـې تـر پخـوا لا پسـې ډنګـر شـو، دا ځکـه چې کار يې خورا درونـد او خواړه يې خورا سپک وو.

ده بـه چـې کلـه کلـه د څتـک وهلـو پـر وخـت د کارغـالي څښـتن تـه پـه ډېـر احتيـاط او احتـرام وريـاده کـړه چـې يـوازې پـه وچـه دوډۍ، هغـه هـم نـيم نـيم خـوره بانـدې يـې ګـوزاره نـه کېـږي او ورځ پـه ورځ پـه ځـان کـې ضـعف احساسـوي، نـو هغـه بـه ورتـه ويـل: "وروره ! مـوړ او تاسـې خـو شـکر دی ايمـان لـرو، د ايمـان پـه رڼـا کـې چلېـږو، ښـه ډوډۍ څـه کـوې؟ بيـا بـه دې نفـس زورور شـي او کبـر بـه درځخـه وشـي، پربـږده، خـدای بـه يـې پـه هغـه جهـان کـې عوضـونه درکـړي او خـورا بـه دې مـوړ کـړي، تـه خپـل کـار پـه صـداقت او ايمانـدارۍ کـوه ! نـه دې دي اورېدلي چې وايي: "صداقت زوال نه لري".

د کـارګر دا پورتـه غوښـتنه او د کارغـالي د څښـتن دغـه منطـق کلـه کلـه تکرارېـده، خـو کـارګر لـه دې ډار نـه چـې و بـه يـې باسـي او بيخـي بـه لـه لـوږې اوږد، اوږد وغځېـږي، څـه نـه ورتـه ويـل او ډېـره (سـپين سـترګي) بـه يـې نـه کولـه. بـادار يـې د ده او ده غونـدې درو، څلـورو مزدورانـو پـه اوږو پـه لـږه مـوده کـې يـو څـه ومونـدله او پـه هغـه يـې د خپـل کارغـالي لـه پـاره نـور سـامانونه او آلات رانيـول، چـې البتـه پـه دې ډول يـې کـار او بـار نـور رونـق پسـې ومونـد او د ده عايـدات ډېـر شـول. دې پښ پخـوا انفـرادي کارونـه کـول، خـو اوس يـې قـراردادو تـه

لاس واچاوه او خورا ښه پيسه يې وموندله. دا ځکه چې د ده د خپلو قراردادو د عايداتو ستره برخه له هغو خلکو سره شريکوله کوم چا چې ښه صلاحيت درلود او له ده سره يې مشروعه او نامشروعه مرسته کولای شوه.

له بده مرغه د کروړ خوارکي لبچ په هغه وخت کې چې د يوې الې په واسطه يې او سپنه کږوله مات شو ، د کارغالي ښتن مازې سر وښوراوه او کروړ يې مخاطب کړ:

"قسمت به دې دغسې و ! پر دې يو لاس ماتېدو شکر وکاږه ! ځکه د کومې لويې ګناه په مقابل کې به چې هغه ښايي ستا هېره وي او يا به اصلاً ورته ملتفت شوی نه وې دا مصيبت درته رسېدلی وي او ښه شو چې دواړه لېچونه دې د هغې (نامعلومې) ګناه په مقابل کې مات شوي نه دي پاڅه او ژر پر دغو خپلو وينو باندې يو څه ايرې وشينده چې بدې معلومېږي ".

کروړ خوارکی بېسده و او هيڅ يې دې خبرو ته فکر نه و ، نورو مزدورانو د کارغالي يوه ګوټ ته وشکاوه او يو څه سرې او به يې پر وشيندلې.

کروړ چې تر نيم ساعت وروسته راپر سد شو د درد له لاسه پر آسمانو ګرځېده او خورا په زوره زوره يې نالش او زګېروي کول، د کارغالي ښتن دا نورو ته وويل:

"په غوږو يې کوڼ کړم. ژر يې له دې ځايه دباندې وباسئ ! پر ده خو خدای راوستلې ده، نو موږ ولې ځان ورسره په عذاب کړو ؟"

مزدورانو چې هر څه عذرونه ورته وکړل قبول نه شول او دی يې دباندې راوست او د عمومي سړک په يوه ګوټ کې يې څملاوه. په دې وخت کې د هغه د بدبختيو او خواريو اندازه غير له طبيعي او عادي انسانه بل چا نه شوه لګولای. ډېر خلک پر دې خوارکي راټول وو او تقريباً ټولو يې مازې سيل کاوه او د ده نالش ته حيران وو. يوه بادرده زلمي دې ګڼو خلکو ته مخ ور واړاوه او ورته ويې ويل:

"دغه دی، د هغو خلکو وضعيت او انجام، څوک چې واقعاً نړۍ ودانوي او په خپل زحمت د هر چا لپاره ښه ښه شيان برابروي، نو تاسې که ورسره مرسته نه کوئ، نو لږ تر لږه په دې ځای کې خو په خپل موجوديت سره هغه مه ځوروئ او په خپل کار پسې ولاړ شئ".

په دې وخت کې يو بربنډ جوالي ور وړاندې شو او د ده لاس يې په لاس کې ونيو او بيا يې سر ونښوراوه او ويې ويل: "لاس خو يې ډېر وړې دی، بايد شکسته بند وي چې هغه ور وتړي".

يو سړی ور وړاندې شو او د ده لاس يې د يوه لرګي سره سم په اوږو ور وتاړه.

له حاضرينو څخه يو تن چې پر کروړ يې خورا زړه سوی و وويل:

"د دې کارغالي خاوند خدای خوار کړي خورا ظلم کړی دی چې دا خوارکی يې په دې وضعيت دباندې غورزولی دی، د دې وړ دی چې سړی عرض پر وکړي".

یوه بل ورزېغ کړ: "که دې سر خوږېږي داغ پر کښېږده! د کارغالي څښتن خو د ... صاحب سره خورا ښه روابط لري، بلکې خپل یې دی. که ستا په دې نیت خبر شي دا سې بېزو به درته جوړه کړي چې په کلو کلو به ځان ځنې خلاصولای نه شې".

یوه بل پر وړزېغ کړ: "څه موده تر مخه په دې کارغالي کې یو مزدور د کار په وخت کې مړ شو، والله که هیچا دا سې ورته ویلي وي چې له دې ځایه پاڅه، هلته کښېنه، یو هیئت راغی، هغو ولیکل چې مزدور د خپلې بې احتیاطۍ په اثر وفات شوی دی".

کروړ خوارکی یو چا شفاخانې ته بوت او هلته یې له څه مودې وروسته مات لاس تړبنه غوخ کړ، ده به تل له ځان سره او نورو اشنایانو ته ویل چې په دواړو لاسو مې ډوډۍ نه شوه موندلی اوس چې مې لاس یو شو، نو څرنګه به د دې خپل ژوند په بقا قادر شم.

له شفاخانې چې راووت نو اکثره شپې به وږی تېرې ګرځېده، یو چا ورته ویل چې ولاړ شه، د کارغالي پر څښتن عرض وکړه! ګوندې یو څه معاوضه خو درکړي.

البته ده دا کار وکړ، خو د دې پر ځای چې معاوضه واخلي، نږدې و چې خپله بندي شوی وای، خو په دې خوشحاله و چې د عرض له مخالفت څخه خلاص شو.

کروړ بیرته د خپل کلي خوا ته روان شو، پر لارې یې فکر وکړ چې په خپل کلي کې یې د شپې د تېر ځای نشته له

يو څه ژور تفکر څخه وروسته يوه نږدې کلي ته ورغی او هلته يې پر امبار (ډېران) باندې يو څو سرې رښکې مونده کړې او له کلي څخه ډېر ارت د عمومي سړک پر غاړه يې يو څه ډېرې سره راټولې کړې او هغه سرې رښکې يې پرې وغوړولې او خپله ورته په پلتۍ (چارزانو) کښېناست، هر څوک چې به پر لارې تېرېده، که به پياده و، که به په موټر کې اکثرو به غيران او شپاړس کيزه د ده خوا ته ورغورځوله او هر چا ته به يې ويل چې: "دلته د يوه مظلوم د شهادت ځای دی".

په لږه موده کې پر دې ډېرو برسېره زړوکي او توغونه ودرول شول او ورځ په ورځ د ده عايدات ډېرېدل.

وروسته کروړ له دې درکه خورا ښه غټه پيسه ومونده او په خپل کلي کې يې ډېر ځايونه په رانيول هر کال به يې دغه د ډېرو کوټه چې اوس ماجد پر راګرځېدلی دی، نورو خلکو ته په اجاره ورکوله او ځان يې هم د هغه (مهم شهيد) کړوسی باله.

په دې ذريعه کروړ د لوی ثروت او غټ جايداد خاوند شو.

۱۳۳۵ ش کال - ۱۹۵۶ع کال

# زما برخه

د مني په پای کې يې زلمی زوی د سکاروي (برينښ) په اثر مړ شو. د زوی تر مرګه ده لومړی د ځان سره فکر کاوه چې په خپل ټول عمر کې سږکال لږ څه ښه دی، هم يې د ژمي د سړو شپو له پاره په ډېرو خواريو اوړه برابر کړي دي او هم يې له درو کلو وروسته يو لاندی حلال کړی دی، نو خورا راحت يې احساساوه او نسبتاً د مستريح ژمي د تېرېدو پېش بيني يې کوله او ورته هوسېده، واقعاً د زوی مرګ ده ته دروند او خورا ناوړه ټکان ورکړ. دا هم روحي او هم مادي و.

لومړی تر هغه چې مړی پر بمينځي د کلي سپين ږيرو ورته وويل: "ګوره! سترګې مو راکښته نه کړې خپل مړی به ښه پالې، اسقاط، خيرات او نور مراسم به يې په ښه توګه سره سرته رسوې! تېر کال چې دې هغه بل زوی د کوي په مرض مړ شو، څرنګه چې لازم و، هغسې دې و نه پاله، دا پلا به پام کوې!"

ده په داسې حال کې چې په سترګو کې يې د زوی د فراق اوښکو موجونه وهل او نژدې و چې د هغو د بهولو په اثر

ناصح پکي ډوب کړي ورته ويې ويل: "درې، څلور نور واړه راپاتـه دي، د هغوی د ژمي د سړو شپو خوري کـه پـه دې ځوانيمرګ پسې خيرات او اسقاط کړم، نو هغوی تـه بـه څه ورپاته شي؟ تول به خواشيني شي...".

خو د ده عذرو هيڅ فايده و نه کړه او د عمومي دود سره سم د هغو پـه ټينګار يې د خولې اوړه خرڅ کړل او د اسقاط لپاره يې څو روپۍ حاضرې کړې. دا پيسې يو څو کسو مشرانو پـه خپل منځ کې سره ووېشلې او دا غمجن سپين ږيری يې پر وچ ډاګ پرېښود.

يو شی چې و، هغه دا و: کوم چا تـه چې د اسقاط ايکی وروسپارل شو ، هغه د ده مېړانـه، سرښندنه او فداکاري ستايله او ورباندې آفرين يې وايه.

د دې خوارکي يو غم دوه شول، لـه يوې خوا د ځوان او ناکامه زلمي زوی پـه مرګ وويشتل شو او لـه بلې خوا يې د ژمي د سړو شپو خرڅ هم له لاسه ووت.

د کوچنيانو پـه سودا کې ډوب تللی و چې پـه دې وخت کې د يوه بل کلي يو سړی راغی چې پـه شاوخوا ټبر کې يې پـه ښه سړيتوب شهرت درلود. دغه ښه سړي تـه چا پـه کوڅه کې د ښه چاغ او غټ اسقاط صفت کړی و، څرنګه چې يې د مړه زوی پلار وليده، نو پـه ګيلو يې ورتـه پيل وکړ چې: "د مړي ښخېده خو بـه دې زما تـر راتګه ځنډولي وای" او وروسته يې په خوله ورته وويل چې: "زما برخه څه شوه؟"

د دې لپاره چې د دې ويرجن پلار نوم بد نـه شي او د

داسې (ښو خلکو) د نفرت موجب نه شي، نو سمدلاسه يې يو څو روپۍ د يو چا څخه په سود واخيستلې او د دې نوي راغلي صاحب په خوله کې يې ورواچولې او د هغه غونډې د نورو (ښو خلکو) حسن نظر او ښه نيت يې ځان ته جلب کړ او ځان يې نورو خوارانو ته نمونه او سرمشق وګرځاوه.

وروسته له هغه چې ځلوېښت شپې يې ويرو کړ او د ځلوېښتمې شپې خيرات يې بيا (ښو خلکو) ته ورکړ داسې تصميم يې وينو چې په هر قيمت او زحمت چې وي د ژمي د سړو ورځو خوړی (ازوقه) ورموندله کړي او پخپله تودې منطقې ته شيوه شي، نو د منطقې پر بډايانو وګرځېد او له هغو څخه يې په پور د څو منو غنمو مرسته وغوښته، خو هيچا ور نه کړه.

له ډېرې سرګردانۍ څخه وروسته دی او ماينه يې دواړه د هغه صاحب کره ورغلل چې د هغه لپاره يې په سود پيسې اخيستې وې او په اسقاط کې يې ورکړې وې. د ده ماينې د دې صاحب د ماينې د ټيکري پلو غوټه کړ چې د پور مرسته يې ورڅخه وغوښتله. هغه ورته وويل: "مجبور يم د ماينې په دود او دستور پور درکړم، يعني په سلم، خو د سود خوړلو څخه مې دې خدای وژغوري".

وروسته له دې يې لس منه غنم ورته راواخيستل او هر من يې نسبت مروج نرخ ته يو پر دوه پرې جګ خرخ کړ چې ده هم هغه په خوښۍ سره ومنل. بيا نو له معموله سره سم يې هغه روپۍ په غنمو پر ماتې کړې، چې په دې ډول

خوارکي تحريري تعهد وکړ چې د دې روپيو په مقابل کې به شل منه غنم د فصل د رسېدو په وخت کې ورکوي.

دا غنم داسې ورته ښکارېدل چې وړيا چا وربخښلي وي او په خورا خوند سره يې چې بريالیتوب يې هم احساساوه کور ته راوړل.

وروسته له مفاهمې او سلا مشورې ده او مايني داسې فيصله وکړه: "څکه چې دا اندازه غنم د درو مياشتو لپاره نه بس کېږي، نو ښه دا ده چې هغه زيږه اوړه شي او له اوړو څخه په سپما او احتياط لېټي وريخوي او په دې چم کوچنيان لکه د نورو کلو له دې ژمي څخه راوباسي".

د ده کوچنيان ښکلي دي، خو رنګونه يې لکه د مور او پلار ژړ او تکي وينه پکې نشته، د دوی د اختر ورځ او د نګولي ورځ هغه وخت وي چې يو بډای سړی چيرته په کلي کې مړ شي او په هغه پسې خيرات وشي.

د دوی پلار هم ليري تاوده ځای ته نه ولاړ، په دې علت چې آوازه وه چې د کلي کاربز خېژي او ده هيله درلوده چې په کاربز کې به يو څو وګټي، خو کاربزکشي هم و نه شوه او دی پر کور پاتې شو.

د دوی له ښو طالعو څو کسه بډايان پر له پسې وفات شول.

که څه هم د دوی وجود د خوراک د نشتوالي او خرابوالي له امله هر ډول مريضۍ ته چمتو دي، خو له ښه مرغه تر اوسه لا نه دي ناروغه شوي.

دوی چې په کوم خيرات کې نوکې نګولي وخوري، نو له مور او پلار سره لاس پورته کړي او وايي: "خدايه! مرضونه له مور څخه ليري ګرځوه! ځکه چې مور يې طاقت نه لرو او نه يې د مجادلې وسيله راسره شته".

يوې نهه کلنې نجلۍ د زړه له کومي ږغ وکړ: "خدايه! دا نبستي له مور نه واخلې او مور په نس ماره او په تن پټ کړې".

پلار يې ورغبرګه کړه: "زه يقين لرم چې ستا سو د معصومانو په دې دعا کې په مليونو کوچنيان او ببوزلي درسره ملګري دي او د حال په ژبه درسره امين وايي!"

۱۳۳۵ ش کال - ۱۹۵۲ ع کال

# د کور ګټه د لاهور ګټه

د سبا ناري مېز واوډل (ترتيب) شو، د کاله اعضا پرې راټول شول. يو په عمر پوخ سړی د مېز پر سر کښېناست. هغه لږ څه خپه غوندې ښکاري. په ډېره بې ميلۍ يې د رومي بانجڼو د اوبو ګيلاس ورواخيست او يو غوړپ يې ترې نه وکړ، خپل مشر زوی ته يې مخ ور واړاوه او ورته ويې ويل: "ښاغلي... نه و راغلی؟ تر اوسه پورې نه شو ښکاره، ګوندې د باغ په څښتن پسې به تللی وي، هو! په دې نږدې تو ابعو کې هم دا يو سړی دی چې لکۍ په لاس نه راکوي، نن او سبا کوي، خو معاملې ته نه حاضرېږي".

دوهم زوی يې ورته وويل: "هغه ډېر کاپير سړی دی، تر څو پورې چې يوه لويه بيزو ور نه جوړه نه شي او په يوه غران پسې په لوبه و نه ګرځول شي هيڅ وخت په حاضر نه شي چې دا باغ راباندې خرڅ کړي".

مشر زوی يې وويل: "آخر به تر راته کښېږدي، په هر صورت چې وي دې کار ته به يې آماده کړو، ځکه زموږ هم بله چاره نشته، که دا جايداد په لاس را نه شي، ګواکې موږ هيڅ نه لرو. اوه... را په ياد شو: زما مغزو ته يو ښه فکر راغی، هغه دا دی چې موږ بايد ښاغلي... ووينو او د هغه په غاړه کې يې ور واچوو چې دعوه په وکړي او په دې توګه به

طبعاً پيسو تـه اړ شي، ځمکه او بـاغ خـو لا څـه چې هـر څـه بـه راکړي".

پـلار يـې د دوی خبره غوڅـه کـړه او ويـې ويـل: "د دې چـاره اسـانه ده، تاسـې دا فکـر وکـړئ چـې دا دونـه پيسـې چـې اوس بيرتـه راغلي او کوټـه-کوټـه پرتـې دي څه بـه پـه کـوو؟ پـه کـور کـې د دوی ايښـودل خـو ښـه کـار نـه دی او خطـر هـم لـري، هغـه لا څه کوې چې له ګټې وځي او وتلي لا هم دي".

مـاينې يـې ورتـه وويـل: "لـږ څـه احتيـاط پـه کـار دی، پـر داسـې شـيانو بايـد بنـدې کـړی شـي چـې بيـا بيرتـه ژر او تـورتې لاس تـه راشـي، زمـا پـه خيـال د نـورو کلـو غونـډې بايـد غـنم پـه رانيسـو او پـه پسـرلي يـې خـرڅ کـړو. تاسـې وليـدل چـې د بچـه ګـرو[۱] پـه وخت کـې مـو ځونـه ګټـه وکـړه! يـوه افغـانۍ مـو لـس نـه شـوې؟ تـر دې بـل ښـه او د برکـت کـار نشـته، بايـد سمدسـتي پـه همدې کار پيل وکړئ".

دريـم زوی يـې وويـل: "سـږکال بـه مـو دا کارونـه ښـه سـر و نـه نيسـي، ويـل کېږي چـې مراقبت بـه وشـي او مشـکلات بـه جـوړ کـړی شـي، ځکـه چـې ځينـو نـورو غټـانو هـم دې کـارو تـه لاس ورته کړی دی".

هغـه بـل راوړغ کـړ: "پېسـه د زوی سـر وهـي، پـه دې خبـرو پسـې مـه ګرځئ چـې يـو څـه (زهـر) دې پـه خولـه کـې ور واچـول هر کار به ستا پر زړه وشي".

لـه يـو څـو نـورو خبـرو او دلايلـو وروسـته فيصـله وشـوه چـې د حـويلۍ د سـر ځلـور خـونې بايـد سمدلاسـه خلاصـې شـي او

هلتـه غـنم واچـول شي او هـم د تـوري د زوی کـره بایـد احـوال ورکـړ شي چې هغـه هـم څـو خـونې د دې مقصـد لپـاره خلاصـې کـړي. پـه پـای کـې معمـر سـړي پـه متانـت او امرانـه ږغ دا هـم وويـل: "هلکـو ! تاسـې پـه دا نـورو خلکـو لکـه... خـان او... خـان پسـې څـار واوسـئ چې هغـوی خپلـې پيسـې پـه څـه شـيانو بندوي؟ "

مشـر زوی يـې وويـل: "اکثـره يـې پـه همـدې شـيانو بنـدوي. هغـه بلـه ورځ مـې وليـدل چې خـورا ډېر غـنم او جـواري يـې کـور تـه ننـه ايسـتل او ويـل يـې چې څـه وکـړو ؟ خـواران خلـک يـو خپله غريبي کوو چې يوه خوله مړې وګټو.

پـه دا بلـه ورځ دوی د غنمـو پـه رانيولـو پيـل وکـړ او عـلاوه پر خپلـو غنمـو يـې پـه لـږه مـوده کـې ډېر نور غـنم رانيـول، چې خـورا درنـه ذخيـره يـې ترينـه جـوړه کـړه او ټـولې خـونې يـې پـرې ډکـې کـړې. پسـرلی نـژدې شـو د ژمـي د واورو هـم دومـره مـزه نـه وه او بارانونـه هـم دومـره ډېر و نـه شـول... خـان خـورا خوشـحاله دی او تخمـين کـوي چې کـه مـو خـدای سـږکال لا هـم دا غشـی پـه ننبـه کـړ، نـو يقـين دی چې سمدلاسـه بـه د کـور هـر غـړي تـه نوی ماډل موټر راغواړم.

د حمـل د مياشـتې آخـره ده، بيـا د سـهار پـر نـاري سـره ناسـت دي. پـلار مشـر زوی تـه وويـل: "پـرون خـورا ځـوړ و او خلـک نارامـه غونـدې معلومېـدل. احـوال دې و نـه پوښـته چې علت يې څه و ؟ "

زوی يـې پـه خـورا وريـن تنـدي او اعتمـاد ورتـه وويـل:

"پرون په منډيي کې نژدې ډېر خلک مړه وو، ځکه چې غنم خورا ګران او لږ شوي وو، نرخ هم خورا ښه لوړ شوی دی. خو هغې اندازې ته لا نه دی رسېدلی چې بايد ور ورسېږي".

ماينې په فاتحانه نظر خپل مېړه ته وکتل او ورته وېې ويل: "پرون د هغه باغ والا يوه خپلوانه راغلې وه او ويل يې چې هغه اوس حاضر دی چې خپل باغ او ځمکه پر موږ باندې خرڅه کړي او حتی دې ته هم ولاړ دی چې خپل شين فصل هم ورسره راکړي".

مشر زوی يې پلار ته مخ کړ او ورته وېې ويل: "دقيق او باسنجشه پلان هم خورا ښه شی وي، په سلو کې سل کامیابېدونکی وي، له هغه وخته چې کاکا د خپل ورور د وژلو وعده وکړه او څو ځلې يې لاندې باندې وځغلاوه او دواړه زامن يې وربنديان کړل، نو اوس سمې ته راواوښت، شين فصل لا څه چې هر څه خو به لا راکړي".

پلار يې ورته وويل: "نجومګرو ويلي دي چې سږکال به غنم په منونو نه خرڅېږي، بلکې په چيټاکيو او مثقالونو به خرڅېږي، که دا خبرې رشتيا شي نو واقعاً دا ټولې خونې به له روپيو راډکې کړي چې لس پښته به يې نه شو تمامولای او هم به شا او خوا ځمکې او کاربزونه ټول رانيولای شو".

په دې وخت کې د دوی د لوی او مجلل انګړ ور وټکېده او خورا ځوړ او ژړا وه، پلار يې وويل: "ګومان کوم چې د دې سيمې خلک دي او ټول راغلي دي چې غنم پر خرڅ کړو

او په پور يې ورکړو ".

چې ور ووتـل ګـوري چې يـوه لويـه ډلـه خلـک چې اکثـره يـې لــه لــوږې نــيم ژوانــده او ســترګې يــې پــه کـولکــانو کــې ژورې لوېـدلې دي ولاړ دي، پـه دې ډلـه کـې اکثـره کوچنيـان، ښـځې او سـپين ږيـري دي او اکثـره يــې نــارې او چيغــارې وهــي چــې "د خداى لپاره له لوږې مړه شوو ! ".

دوى چـې دا دومـره خلـک وليـدل وارخطـا شـول او د انګـړ ور يــې ورتمبـه کـړ. د وره لـه شـا څخـه يـې ږغ ورتـه وکـړ: "نـور خلـک دې تيـت شـي، يـوازې درې، څلـور سـپين ږيـري دې پاتې شي چې له هغو سره نرخ مات کړو ".

خلـک سـره خپـاره شـول، خـو يـوه سـپين سـرې ښـځه ور وړانـدې شـوه او د وره لــه چاکــه يــې پــه خــورا عجـز ورتــه وويـل: "يـو کـوچنى لمسـى مـې دى چـې لـه لـوږې يـې د سـترګو تـور ځـي او سـپين يـې راځـي. کـه لـږ رحـم وکـړئ او سمدسـتي يوه ګوله ډوډۍ راکړئ ".

مشـر زوى يـې ورتـه ور ږغ کـړل: "ودرېـږه ! چـې نـرخ معلـوم شي ".

څـو کسـه سـپين ږيـري او مخـور کسـان پـه کـور ننوتـل او سـر ځوړنـدي کښېناسـتل. پـه نـرخ بانـدې خبـرې شـروع شـوې او وروسـته لـه دې چـې څـو تـذليل کـوونکې خبـرې يـې واورېـدې، نـرخ پـه دې توګـه وټاکـل شـو: "پـه نغـدو مـن پـه پنځـوس، د يـوې مياشـتې پـه پـور شـپېته، د دوو مياشـتو پـه پور په اويا او تر اسده پورې په اتيا افغانۍ ".

خلکو چې دا ترتيب غنيمت وګاڼه او د خپل ځان لپاره يې د نجات وسيله تصور کوله په لږه موده کې يې اکثره برخه غنم په پور او يا په نغدو ځني رانيول.

په دې وخت کې احوال ورته راغی چې... خان او نور يې تر دې لا په لوړ نرخ خرڅوي او خورا لويې ګټې يې وکړې. دې خبر په دې کاله کې تاثر او خواشيني پيدا کړه او خورا خپه شول چې موږ خو ډېر تاوان وکړ او په دې توګه يې خپله پخوانۍ خساره تر يوه حده پورې تامين کړه.

بله ورځ يې زوی يو ښکلی کتلاک راووړ چې په هغه کې د هر ډول ګړنديو موټرانو تفصيلات او عکسونه درج وو او پلار ته يې وويل چې اوس بايد د سږکال د ماډل فرمايشونه صادر کړو چې بيا ناوخته کېږي. هر يوه ځانته بېل، بېل موټر خوښ کړ او فرمايشونه يې صادر شول.

ده په ډېره خوشحالۍ ماينې ته وويل: "رښتيا يې ويلي دي چې "د کور ګټه- د لاهور ګټه ده".

ورو ورو د پورو ميعاد راورسېد او د دې بډای د ناظرانو له خوا پر خلکو باندې تقاضا شروع شوه او ناظرانو يې هرې خوا ته په شديد فعاليت پيل وکړ، خو خلکو يې د تاديه کولو توان نه درلود. دوی هم د خپلو اسنادو په موجب عرضونه پرې کول. له دې جهته اکثره يې بنديان شول او چا کډې وکړې او سترګې يې نهامې کړې او په دې ترتيب د دې کهول جايداد نور هم پسې غټ شو.

يوه زلمي هغو کسانو ته چې کډې يې کولې

وویل: "ورونو په دې ترتیب ستاسې خلاصون نشته، باید د دې ډول محتکرینو او د دوی د ملاتړو په مقابل کې یو موټی شئ".

۱۳۳۵ش کال عقرب – ۱۹۵۶ع کال نومبر

# ځوږه جوړه شوه

خمڅ يو باحرارته او فعال هلکی معلومېږي، متشبث دی، په هر شي کې دقت کوي، په مور او پلار يې الله او جلله (ګوزاره، چاره) ودرېده او لکه ډېر نور کهولونه د خپلې کلبې نه د نېستۍ له کبله په کډه کېدو مجبور شول او فکر يې وکړ چې داسې ځای ته لاړ شي چې هلته بزګري او يا بله خواري ورمونده شي او په دې توګه د ژوند سره که څه هم په خورا ضعيف صورت سره وي مبارزه وکړي.

ده يو خر د کال په وعده له يو چا څخه په پور واخيست چې قيمت يې د پور په لحاظ له معموله سره سم خورا اوچت و او پر دې خره بانډې خپله کډه چې يو زوړ لمڅی، دوې زړې برستنې، يوه د لرګي کاسه او يوه بډنۍ وه او هم دوه کوچني ماشومان وو، بار کړل لومړی تر هغه چې کډه وکړي خپله يوه خونه يې هغه پورورې ته ورکړه کوم چې د کډې په وخت کې د ده خر تر غاړې ونيو او د هغو څلورو منو اوړو چې په پور يې ورکړي وو غوښتنه ځنې وکړه.

په بېړه يې له خپل کلي او پورورو څخه سترګې نهامې کړې او يوې بلې منطقې ته روان شو.

پر لارې يې دا لنډۍ ويله:

عمر مې ټول په غم کې تېر شو
خاونده خدايه! بېغمي به کله وينه

کوم وخت چې به خر پر لوړه خوت، نو له هغه سره د کومک په نيت به يې کوچنيان ده او ماينې پر خپلو اوږو واخيستل او په دې توګه به يې د خره پېټی ورسپک کړ.

دوی يوه شپه پر لارې وکړه او بله ورځ مازيګر يوه بل کلي ته چې د دوی په نظر کې و ور ورسېدل. د دې کلي تعريف دوی ډېر اوربدلی و او هر چا به ويل چې هلته بزګري پيدا کېږي او د يوه خوار کاله شپه پکې تېرېږي، په تېره بيا د هغه کلي د ملک ځمکې خورا ډېرې او مشهورې وې او هر چا به ويل چې هغه بزګرو ته احتياج لري، خو د دوی له بده بخته د هغه احتياج پوره شوی و.

مېړه يې د يوه بل ځای نوم ور واخيست چې هلته به لاړ شي او په پسرلي به يو څه للمې وکړي، ګوندې يوه ګوله ډوډۍ د يو څو شپو لپاره خپلو کوچنيانو ته وربرابره کړي، خو د ماينې يې په دې رضا نه وه، ځکه چې دوی د دې لپاره هيڅ وسيله نه درلوده چې د خپل ځان لپاره للمې وکړي، نو يې مېړه ته متل تېر کړ چې:

"زما لاس يې کدنی – کوم دي هل، کوم دي غويی".

د ده ماينه د ملک کره ورغله او د هغه ماينې ته يې وويل چې مزدور يې کړي، مېړه او ماينه يې دواړه د ملک سره مزدوران شول.

خمټ د خپلو ښو حرکتو په وجه د هر چا توجه جلبوله. د

ماجت ملا ته ورغی چې هم سبق ورته وو وایي او هم د یوه چړي کار ځني واخلي او په دې توګه هم نس واړوي او هم یو څه زده کړي. خمڅ په لږه موده کې لوستی شو او ځینې کتابونه یې وویل. ده هغه کلی نور د ځان له پاره تنګ احساس کړ او یوه ښار ته راغی چې هلته یې د یوه سړي په مرسته یو څو کاله مکتب هم ولوست.

خمڅ د ناداری او نېستی له کبله نور مکتب ته دوام ور نه کړ او په یوه اداره کې یې په کار کولو پیل وکړ او د یو څو کلونو په موده کې یې احساس کړه چې دلته چنداني پېشرفت نه شي کولای او ښه دا ده چې اطرافو ته ولاړ شي او هلته د کوم بډای د کوچنیانو خصوصي معلمي ځان ته پیدا کړي او په دې توګه خپل مور او پلار چې اوس نو زاړه شوي دي وساتي او هغوی نوکی هوسا کړي. خمڅ په خپل دې فکر عمل وکړ او وروسته تر استعفا کولو یې ځان ته په اطرافو کې معلمي وموندله او د کال په شپېتو منو غنمو نوکر شو. دا مقدار غنم یې مور او پلار په خپل ټول عمر کې نه وو لیدلي او په دې چې دوی د دغومره مقدار غنمو څښتنان شول خوشحالی یې کولې. ده په خورا ښه زړه کډه خپل کلي ته راوستله او هیله یې درلوده چې اوس به نور د یوه آرام ژوند څښتن شي.

خمڅ چې په کوم دفتر کې کار کاوه له هغه ځای نه یې یو څه پیسې پېشکي اخیستې وې، له هغو نه یې یو څه ور رسولې وې او یو څه لا پر پاته وې. نو مربوطې څانګې د ده

مرجع ته مکتوب ولېږه چې دا پیسې ترې حصول کړي.

دا مکتوب چې په سلسله د ده علاقه دارۍ ته ور ورسېد البته په هغه مکتوب کې د څلورو ، پنځو مربوطو دایرو او وزارتونو نمرې ثبت شوې وې.

د علاقه دارۍ کاتب چې نوی مقرر شوی و له عادت نه خلاف یې دا ټولې نمرې په جلب کې توضیح کړې او هغه یې د خمڅ کلي ته د ده د اطلاع له پاره واستاوه چې د باقي په تحویلولو کې توجه وکړي.

د دې کلي ټول لوست او لیک لکه د نورو کلیو په شان د کلي ملا صاحب کوي او هر خط چې له کلي نه ځي هغه یې لیکي او هر یو چې بیا راځي هغه یې لولي، نو طبعاً دا جلب یې ملا صاحب ته ور وور، چې ویې لولي.

هغه دا ټولې نمرې چې په جلب کې توضیح شوې وې یو په بل پسې وتړلې او په داسې حال کې چې د خمڅ سپین سرې مور هم ناسته وه په خورا غمجن او نیولي ږغ یې د خمڅ مور ته وویل:

"کور دې خراب شو ! نه یوازې ستا کور خراب شو بلکې ټول کلی ورک شو ".

بیا له ځانه سره وایي: "یکن، دهن، صداً، هزارن، ده هزارن، لکن، ده لکن، کروړن، ده کروړن، اربن، ده اربن " اوف ! دا خو تر حساب لا تېرې شوې. خمڅ مزغی ماتی خو په اربو او کروړو روپۍ د دولت پوروړی او باقي دی اوس یې خط پسې رالېږلی دی چې ژر دا روپۍ تحویل کړي.

اوس به څه کوو؟ چاره يې څه ده؟"

سپين سرې دا خبرې واورېدې سمدلاسه بېسده شوه. وروسته تر هغه يې په ساندو خوله پورې کړه چې د کلي اکثره خلک يې پر ځان راټول کړل او هر څوک په خورا اضطراب سره پوښتنه ځنې کوي.

په پای کې دې د ملا صاحب خبره دوی ته وکړه او څو نورو سپين سرو ښځو هم په ژړا خوله بيرته کړه.

په ټول کلي کې يوه لويه هنګامه او ځوړه جوړه شوه، د کلي نورو خلکو چې دا آوازه واورېدله ټول په ډېر اضطراب کې شول چې اوس به د دې کروړو روپيو ځواب څه وايي. ځينو خلکو د دې لپاره چې ژر له دې خطره ځانونه وژغوري او سترګې نهامې کړي په کډو بارولو پيل وکړ او ځينو د خرو رانيولو ته هڅه وکړه چې هغوی هم ژر کډې پرې بار کړي چې په دې صورت د بوده ګانو قيمت هم خورا لوړ ولاړ.

کوچنيان چې ښځو ته وګوري هغوی هم چيغې وهې او خورا لويه هنګامه ده او ټول خمتې ته په ښکنځلو لګيا دي، په دې حال کې يو بل هلک پيدا شو چې د يوه بل کلي و او تازه له مکتبه د رخصتی په ډول راغلی و، هغه د دې حال پوښتنه وکړه نو ماجت ته ورغی چې هغه جلب وګوري، هلته ګوري چې صرف پنځلس افغانۍ پر خمتې باندې پاته دي او دا صرف د ملا صاحب يوه سهوه ده چې له هغو نه يې په کروړو او اربو روپۍ جوړې کړې دي.

په دې توګه يې خپل ټول کلي له وير او غم نه وژغوره او په ټولو ساه ننوتلو او خيراتونه وشول.

۱۳۳۶ ش کال حوت - ۱۹۵۷ ع کال مارچ

# د سمڅ مور او پلار

سمڅ لکه اکثره نور کوچنيان په يوه خواره او پرېشانه کورنۍ کې زوکړی دی. پلار يې بزګري کوله او سره له دې چې په لاس او پښو کې يې د چاودونو چړاخونه (اوږده زخمونه) وو او په کال کې لس مياشتې کاملاً مصروف و، بيا هم ده خپلې ماينې او يو دوو کمکيانو ته سپوره ډوډۍ نه شوه ورکولای. تل به پوروړی و او همېشه به د سودخورو ډله د ده د خونې له مخه چې انګړ يې هم نه درلود ناسته وه.

د سمڅ مور هم کراره ناسته نه وه او په کار او زحمت ايستلو کې تر خپل مېړه هيڅ وروسته نه پاتې کېده، مثلاً د لو په موسم کې به يې وږي ټولول او د غنم دانه به يې لکه د هوا مرغۍ غوندې اخيستله.

د سمڅ مور مجبوره وه چې د لو په موسم کې خپل په تې پوري هلک (سمڅ) هم وډو ته له ځانه سره يوسي، ځکه چې ده ته بايد هر دوه درې ساعته وروسته تی ورکړي.

ځمکه او آسمان به له ګرمۍ نه ايشېدل او د تودوخې تاخون به هر ذيروح خورا متاثره کاوه، په همدې تاخون او په همدې تودوخې کې به د سمڅ مور لګيا وه وږي به يې ټولول.

د دې پښې طبعاً لوخې وې او د دې لپاره چې خپلې پښې د وړ له ازغيو څخه تر يوه حده وژغوري، نو يو څه وابنه او يا ناړې (د بوټو ساقې) به يې پر پښو وپېچلې او بيا به يې په خورا حرارت او تاوده زړه په وړو ټولولو پيل وکړ.

سمڅ ته به يې يوه وچه واله کې د ناړيو کوچنۍ ځاله جوړه کړې وه او په هغه کې به يې بيداوه.

په دغه ځاله کې به د سمڅ له څنګه د اوبو کوچنۍ کوزه هم پرته وه. کوم وخت چې سمڅ وژاړي او يا يې مور د عادت سره سم د پام کولو لپاره د ده ځالې ته ورننژدې شي او دی ويښ پيدا کړي، نو ده ته تی ورکوي. خو له بده مرغه ګرمي دومره ډېره وي چې د ده د مور مخ په ډېر سوروالي کې تور اوښتی وي او نه يوازې د بدن ټوله وينه يې پر جوش راغلې وي، بلکې د دې پی هم ايشي. د مور په تيو کې يې شيدې داسې تودې وي لکه د ايشېدلو اوبو غوندې.

شاوخوا هيڅ ونه هم نشته چې د سمڅ مور يوه ګړۍ ترې لاندې کښېني او خپلې شيدې د سمڅ لپاره يخې کړي. بله چاره نشته، د کوزې څخه يو څه اوبه پر خپلو تيو اچوي او دا عمل تر هغې بيا تکراروي تر څو چې شيدې له خپله جوشه کښېني او هغه بيا سمڅ ته ورکړي.

ځکه چې شيدې هم تودې وي او د سمڅ ځاله هم دومره سړه نه وي، نو څرنګه چې تی وروي هغه يوه ګړۍ وروسته

بيرته قي کړي او په دې توګه د خپلې مورکۍ پر زړه داغ ولګوي.

د سمټ پلار هم کله کله اتفاقاً راشي او د خپلې ماينې او کوچني دې ماجرا ته وګوري او ځينې وختونه يې د دې منظرې په ليدو زړه له واکه ووزي او د اوښکو سيل يې له سترګو څخه را روان شي، خو دستي مخ واړوي او کوښښ کوي چې ماينه يې دا وضعيت و نه ويني.

که ماينه کومه خبره ورسره وکړي دی د هغې ځواب نه ورکوي، ځکه چې ستونی يې له ډېر خپګان نيول شوی وي او پوهېږي چې که يې مازې خوله سره بيرته کړه کريږه به يې تر اسمانه وخېژي.

فقط يو شی دی قانع کوي او له کريږو څخه يې منع کوي هغه دا دی چې دی له ځانه سره وايي چې زه يوازې نه يم، په دې ودې کې يوازې زما ماينه او کوچنی زوی دا وضعيت نه لري، بلکې دا وډ او نور شاوخوا ودونه له دې ډول ميندو او ماشومانو نه ډک دي او د ټولو همدغسې حال دی.

کله کله يې دا متل چې "د جهان غم نه غم دی" روحيات خورا ور پر ځای کړي او يو ډول سرور او اطمينان په ځان کې احساس کوي، خو البته دا د سرور حال ډېر دوام نه کوي او ژر بيرته د خپلې ماينې او زوی وضعيت ته وګوري او بيا د تاثر پېټی پرې واوړي.

کله کله به دې سختيو او خواريو دومره په عذاب کړ چې ماينې ته به يې ويل: "زه او ته د دې کوچنيانو په راوړلو

او بيا لويو لوکې يوه لويه ګناه کوو، ځکه چې که ما او تا غوندې خلک هر څومره ډېر ېږي، هغومره د نورو خلکو د تکليف او عذاب موجب ګرزي او هم به خپله په دې ژوندانه کې ډېر لالهانده او سرګردانه وي ".

دا کلمې به يې په داسې توګه ادا کولې چې ګواکې د ده بنځه بايد ده ته نوکی ډاډ ورکړي او د ده د غمونو او چرتونو بار سپک کړي. ماينې به يې ورته وويل: "په دې زه هم نه پوهېږم چې سره له دې چې لس مياشتې کار کوو او خواري کاږو خو بيا هم د شپږو مياشتو څوری نه شو برابرولای او هيڅکله زه او ته په نس نه يو ماړه شوي او پر خپله ډوډۍ مو اړرې نه دی راختلی مګر سره له دې ټولو بيا هم بايد شکر وکاږو او په خپل وضعيت او ژوند قانع اوسو او ووايو چې خدای مو دې له بدترو څخه وژغوري، داسې حال دې نه راځي چې دا اوسنی حال مو په هېر شي. قوي اميد دی چې دا کوچنيان به رالوی شي او دوی به وکړای شي چې خپل غمونه او د خواريو اسبابونه له منځه ورک کړي او د ځان لپاره به نوې دنيا جوړه کړي او هم به موږ ته په خپل اخري عمر کې د يوه مستريح او نسبتاً آرام ژوند موجب شي ".

مېړه به يې تندی تريو کړ او ورته وبه يې ويل: "تر دې به نو لوی غم کوم وي؟ او له دې نه بدتر حال به څرنګه وي؟ ته لېونۍ شوې يې ماينې! زه خو د دې وضعيت تحمل نه لرم، په هره توګه چې کېږي سږ به له دې ديار څخه کډه کوو او يو

بل ځای ته به ځو چې هلته لږ څه آرام او په نس ماړه شو ".

د دوی ټول عايدات (سره له ورو ټولولو ) د بړش منه غنم شول چې په هغو کې درې منه د ملا زکات، دوه منه د ملک ملکي او درې منه هم په نورو متفرقه وو بسپنو کې ځنې ولاړل.

پاته دوه ويشت منه غنم يې په ځمکه کې ښخ کړل چې د سودخورو له نظره يې پټ وساتي، خو يوه بل سودخور چې نفوذ يې درلود عرض پرې وکړ او ځکه چې اصولي سند يې درلود نو بندي يې کړ.

کوم وخت چې يې بنديخانې ته بېوه د سمټ مور ورته وويل:

"د غه ده تر بد بدتري ... ".

۱۳۳۵ش کال اسد –
۱۹۵۶ع کال اګست

# د بزګر لور

د (بختـورې) داريـه پـه لاس او پـه خـورا خوشـحالۍ سـره دا سندره وايي:

سبا اختر دی، زما کالي کړه راته تور دوبي !
له خياله ډکه يم – غوټې ورکړه ځلور دوبي !

هـو، رښـتيا سـبا اختـر دی، لـوی او واړه هغـه تـه خوشـحالي کـوي، کوچنيـان لاسـونه زيـړه کـوي چـې د نکريـزو رنـګ ښـه واخلي او سـهار يـې لاسـونه تـر هـر چا ښـه وايسـي او په دې ډول د لاس د سره کېدو مسابقه وګټي.

پـلار يـې پـه بـې انګـړه خونـه ورننـووت او بختـورې سمدلاسـه داريـه يـوې خوا تـه کښېښـودله او ورمنـډه يـې کـړه، د پـلار پـه غـاړه کـې يـې دواړه لاسـونه واچـول او ور پـورې ټـال شـوه، پـه ډېره مينـه يـې ورتـه وويـل: "بابـه جانـه ! اوس مـې د ... خـان لـور وليـده چـې پـه اوربـل بانـدې يـې درې لـړه سـپينې روپـۍ قطـار کـړې وې او هـم يـې ويـل چـې پـلار ښـه امېـل او يـو سـور پېزوان ورتـه بخښـلی دی چـې د اختـر پـه سـهار ځـان پـرې ښايسـته کـړي، نـو دا تـه ولـې مـا تـه څـه شـی نـه راوړې؟ تـل وايـې چـې غـاړکۍ بـه درتـه جـوړوم خـو نـه دې کـړه راجـوړه، هغـه بلـه ورځ دې ويـل چـې نـن بايـد پـه تنکـۍ رشـقه ګـوزاره وکـړم او و نـه ژاړم نـو بيـا بـه راتـه اوړه راوړې او غلمينـه

ډوډۍ بـه راکـوې خـو نـن دې بيـا څـادر تـش راوړ. داسـې برېښـي چـې هـيڅ شـی دې نـه دي مونـدلي. راتـه ووايـه! باباجانـه! خـان ولـې خپلـه لـور او زامـن داسـې ښـه سـاتي او د اوربـل لپـاره يـې ور تـه تکـې سـپينې روپـۍ چـې لـه ورايـه رونـې ځلېـږي راوړي خو تـه يـې مـا تـه نـه راوړې! زه دربانـدې ګرانـه نه يم که څرنګه؟ "

د پـلار يـې پـه سترګو کـې اوښـکې وګرزېـدې او د دې لـه معصـومانه پوښـتنو او لـه دې کبلـه چـې وروسـته لـه دومـره سرګردانيو څخـه يـې بيا هم يـو کټـوری اوړه او يـو څـه نکريـزي نـه دې مونـدلي، ټـول ځـان يـې پـر جـوش راغلـی دی او نـژدې و چې لويه کريږه يې تر خولې ووځي...

بزګـر پـه خـورا تکليـف چـې تـا بـه ويـل پـه سـتوني کـې يـې لويـه دانـه ختلـې ده، ورتـه وويـل: "زويکـه! هغـه يـې لـري چـې ورته راوړي يې. زه خوار يې له کومه کړم؟ "

بختوره: "نو ته يې ولې نه لرې، چې هغه يې لري؟ "

پلار: "وايي چې هغه ته خو خدای ورکړي دي، زويه! "

بختـوره: "نـو خـدای يـې مـوږ تـه هـم ولـې نـه راکـوي؟ هلـه، ژر شـه، راتـه ووايـه! ولـې يـې خـدای مـوږ تـه هـم نـه راکـوي؟ درځـه چې ورشو او ورته ووايو چې موږ ته يې هم راکړي... ".

پـه دې وخـت کـې ناڅاپـه د ... صـاحب نـاظر راغـی. د بزګـر چـې پـر هغـه سـترګې ونښـتلې، سمدلاسـه يـې واښـې وانـې وختلـې او ټـول حـواس يـې بايلـل، خـوار پـر خپـل ځـای مـبخ پاتـه شـو او صـرف دومـره يـې وويـل: "کاشـکې خـو خـوار

غريب خلک پر دنيا مه وای پيدا ".

ته به وايې چې عزراييل يې روح اخيستلو ته راغلی دی. ناظر په داسې حال کې چې لغتې يې ورسمې کړې تر شونډو لاندې يې وويل: "خدای دې خوار کړه ! ته هم ځان ته مسلمان وايې، د خلکو حق نه ورکوې او ځان په يوه او بله کوې، هغه وخت چې مړی دې بې کفنه او بې سرشتې پر تشه توره ځمکه پروت و، خو د ... صاحب لاس او پښې دې نيولې چې درته پور درکړي. اوس چې دې د مه سمه شوه، نو ځان پټوې ! که دې د دې لور د چيغو او بغارو لحاظ نه وای او ځان يې نه وای دربانده دې غوړولی نو زه به درسره جوړ شوی وم ".

ده په ډېر عجز او احترام ورته وويل: "ناظر صاحب ! مړی خو مې نه دی کړی چې دومره راسره شدت کوې، نن او سبا مې پرېږده چې دا اختر لږ څه پر قراره تېر کړم او د دې نجلۍ چې سږکال يې مور مړه شوې او خورا غمجنه ده فکر غلط کړم، وروسته تر هغه چې مې هر چيرته بيايې درسره ځم او په هر ډوله کې چې مې اچوې خوشحاله يم، ځکه چې اوږې خو به مې له دې دومره غمونو او فشارونو څخه لږ سپکې شي ".

ناظر په غضب ورته وويل: "خدای وهليه ! تر مړي کولو بدتر کارونه کوې، سږکال خو دې د بزګرۍ غنم تر څو چې موږ درخبر بدو نورو خلکو ته په پورو کې ورکړل او ... صاحب چې څو څو ځلې درته ډېره کښنته بيه په سلم روپۍ

درکړې دي هغه دې هير کړ. های-های بې انصافه! اوس نوري خبرې مه کوه، درځه، درولاړ شه! پخپله د ... صاحب حضور ته دې بيايم. هغه يو شريف او زړه سواندی سړی دی، ګوندې په يوه ښه او آسانه ډول درسره فيصله وکړي او اوربې دې د ده د پور له پاره سپکې شي. درځه! درولاړ شه! چې بيا ناوخته کېږي".

بزګر چې هر څومره کوښښ وکړ فايده يې و نه ښندله او په پای کې يې لور د يوه خپل کره وروستله او پخپله له ناظره سره ولاړ.

بزګر يې د انګړ په وره کې کښېناوه او پخپله ناظر ورغی او ... صاحب ته يې د بزګر د نادارۍ او د هغه د وروستلو کيفيت ووايه.

... صاحب وويل: "ته يې په خونه کې ښه وګرځېدلې؟ ځکه چې دا خلک اوس د پور او پورورو دومره خيال نه ساتي، غنم په ځمکه کې ښخوي او که کوم کالی يا کمپله لري هغه هم خوندي کوي".

ناظر ورته وويل: "غير له يوه زاړه تلتکه، يوې خاورينې کاسې يوه چرګه او له يو څه بروزو چې د نيالۍ پر ځای يې استعمالوي او پر پربوزې بل شی يې په کور کې نه و. مګر هو يو خورا ښه شی يې درلود، چې که درته ووايم ته صاحب به ډېر پرې خوشحاله شې، هغه د ده يوه لور ده چې که څه هم وړه کمندره (۱۲ کلنه، ۱۳ کلنه) ده خو خورا ښکلې ده، مور يې هم دا يو کال د مخه مړه شوې ده، که دې په ياد

وي د هغې د کفن او نورو لګښتونو لپاره بزګر ستاسې نه په سلم رخت او روپۍ اخيستې وې ".

... صاحب ناظر ته وويل: "ورشه ! ملا صاحب راوله او بيا به نو بزګر دې خونې ته راولې ".

بيا يې ملا ته وويل: "ته خو خبر يې چې زما څلورمه ماينه په دې وختو کې مړه شوه او اوس صرف درې ماينې لرم، دلته ... يو بزګر دی چې يوه لور لري او زما پور هم خورا پر ډېر شوی دی چې هغه يې نه شي راکولی، نو که دې په دې مسئله کې مرسته راسره وکړې شوه ښه به وي ".

دغلته و چې بزګر په ناظر پسې راننووت او ... صاحب په خورا پټکه او غضب سره ورته وويل:

"ګوره ! دا ستا څرنګه مسلماني ده؟ حق مې درباندې دی، خو هغه تر څان نه راتېروې ! ولې ظالمه ! موږ دا پيسې په ... ګټلې دې څه؟ "

ملا صاحب بزګر داسې مخاطب کړ: "په کتابو کې يې راوړي دي چې د مؤمن حق ورکول خورا لوی ثواب لري او په هغه جهان کې ډېر اجرونه لري. ای بزګره ! که ته د دغه ... صاحب دين تر څان ورتېر کړې، نو البته برسېره پر دې چې له دنيايي سرګردانيو څخه به څان وژغورې، د هغه جهان ثوابونه به دې هم ګټلي وي. په هره توګه چې کولی شې د ... صاحب سره تېره وکړه او په حق يې ورسوه ".

بزګر سر او خوله ورته کږه وږه کړه او ويې ويل: "صاحب ! والله که هيڅ شی راپورې پاته شوی وي

سړ.کال خو به لا څوک بزګري هم را نه کړي، ځکه چې يو زوړ غويی چې مې درلود او په هغه مې بزګرې مو ندله هغه هم څو ورځې د مخه ستا ناظر په پور کې راڅخه بوت، اوس د غو مره څه نه لرم چې ماښام يې پر تبې واچوم ".

... صاحب ورته وويل: "په دې مکرونو، حيلو او چل ول باندې زه نه پوهېږم! پور مې راوړه، اوس يې راوړه، پر دغه ځای يې راسره فيصله کړه! زه يو پلا دباندې ځم، ملا صاحب او ناظر به درسره خبرې وکړي، خو زه په نور څه نه پوهېږم، خپل پور پر دغه ځای غواړم، پرېږدم دې نه ".

ناظر ورته وويل: "ای بزګره! خدای خوار کړی يې! د ... صاحب په پښو کې به ورلوېدلی او په ژړغونکي ږغ په دې ورته ويل چې: "د خدای لپاره! زه هيڅ پيسې او جايداد نه لرم صرف يو سر لرم او يوه لور چې دواړه به تر تا جار کړم".

ګونډې زړه يې درباندې سوی وای او فيصله يې درسره کړې وای، په يوازې "نشته" ويل خو د خلکو پورونه نه شي ادا کېدلای ".

ملا صاحب وويل: "... صاحب خورا زړه سواندی سړی دی، سخي طبيعته هم دی، د چا د نېکۍ پور او خير پر ځای نه پرېږدي، د خدای پر لار هم خورا سم دی، زکات هم په جګه ملا ته ورکوي، زه به يوه خبره درته وکړم، بايد هغه ومنې او عمل پرې وکړې چې له هره جنجاله خلاص شې!

هغه دا ده چې لور دې... صاحب ته ورکړه، په دې ډول به دې هم لور په نس مړه وي او هم په تن پټه او آرامه وي او هم به

ته له دې سيمې بېغمه شې".

ناظر پرې وررېغ کړ: "زه او ملا صاحب به دواړه کوښښ وکړو چې... صاحب په دې فيصله او سوله رضا کړو".

په دې وخت کې د ... صاحب ميرزا راننووت او د بزګر د حساب صورت يې ورواچاوه چې ټولې درې زره، پنځه سوه افغانۍ شوې دي. بزګر وويل: "د خداى لپاره وره لور پنځه شپېته کلن سړي ته څرنګه ورکړم؟ يه! يه! دا کار نه شم کولاى، خپله يوازينۍ لور په اور کې نه شم اچولى، مړ مې کړئ، پوست مې وکاږئ، خو دا کار نه کوم او خپله يتيمه او ماشومه لور د بدبختۍ په کنده کې نه شم اچولى، بله دا چې ما خو ټولې دولس نيم سوه افغانۍ وړې دي، اوس درې نيم زره ولې شوې؟"

ناظر وويل: "د څوارلسو مياشتو ګټه يې نه شمېرې؟ والله که هيڅوک په دې نازله ګټه روپۍ چا ته ورکړي".

بيا ناظر ملا ته وويل: "دا خداى خوار کړى خو په خپله ګټه او نقص هم نه پوهېږي، موږ يې سمې لارې ته راکاږو، خو دى چې ته څغلي، د لور د ورکولو خط وکاږه او ګوته يې پرې ولګوه! خلاص".

سمدلاسه قلم او کاغذ اماده شول او ويې ليکل: "اقرار و اعتراف صحيح و شرعی به صحت عقل و تندرستی ميکنم که...".

وروسته له څو نصيحتو، تهديدو او تشويقو يې د ده بټه ګوته ولګوله او په دې ترتيب له نقلو ډک د سمال ملا

صاحب واخيست او په خپله مخه لاړ.

... صاحب ناظر ته وويل: "دا نجلۍ په ډ مامو مه راولئ، ځکه چې اول خو د خوار بزګر لور ده او دا زموږ حيثيت ته زيان رسوي، دوهم دا چې ويره ده چې دا کار به پر نورو بزګرانو بده اغېزه وکړي، سبا د اختر ورځ ده ورشه! او يوه سپين سرې ښځه هم درسره بوزه او نجلۍ ترېنه راوړه. د هغه کلي... خان ته هم وو ايه چې کوم وخت راشي".

سبا پر هر چا اختر و، خو بختوره خوارکۍ يې بې له دې چې په خپل شوم سرنوشت وپوهېږي رارهي کړه، پر لارې يې ورته وويل:

"مه ژاړه! د انا کره دې بيايو. هلته به نوې ټيکرۍ او کميس، پسته غلمينه ډوډۍ او ښې موچنې درکړو...".

څو وخته وروسته مو واورېدل چې بزګر خوارکۍ له ډېر غمه ځان د کاربز په سپرغه کې واچاوه او ويل کېده چې لور يې هم د ... صاحب په کور کې خورا د بدبختۍ ژوند يوازې د دې لپاره تېروي چې ګوندې يو وخت وکړای شي د ځان او پلار د بدبختيو کسات له ظالمانو څخه واخلي او خپل غمجن زړه سوړ کړي

۱۳۳۶ ش کال دلو - ۱۹۵۸ع کال فبروري

# د غوايي لاندی

لاس او پښې چاودې، مخ سپېره، شونډې وچې يو کوچنی پښتی غنم پر شا را اړولي او په ستمي د کور پر لور را روان دی. بشپړې نهه میاشتې يې خوارۍ کنبلې او منتونه يې وړي دي تر څو چې د دوبي په آخر نوي منه غنم له بزګرۍ نه ورغلل. په دې کې يې نهه منه غنم ملا صاحب ته زکات ورکړل، درې منه يې پښ ته ورکړل او څلور منه هم رکبه (د فصلونو ساتونکي) ترېنه يووړل. شپېته منه يې هم د هغو دوو زرو افغانيو په سود کې ورکړل کومې چې ده د پلار د مرګ د خيرات او اسقاط لپاره د يوه سودخور نه په شپېته منه ګټه راوړې وې.

په کور کې د ده ماينه او مور او څلور ماشومان د ده لاره څاري او ماشومان يې له کوره راوتلي او د هغې لارې خوا ته په ډېره اسره ګوري، پر کومه چې د دوی پلار اوس کور ته راځي او د رشې غنم راوړي.

د ده مور او مايني د سږ کال د محصولاتو په شاوخوا کې خورا ښې خوږې قصې کولې او هيله يې وه چې ګوندې سږ به يو څو ورځې په نس ماړه شي.

په دې وخت کې ماشومان يو په بل پسې د کور لوري ته راځغلي او ناري وهي چې "بابا راغی او غنم يې په شا دي".
بزگر هم پيټی په شا په کور ورننووت او پيټی يې د خونې له مخه کښېښنود.

د ده مور او ماينې يې په الوتو ښو ترېنه د رشې احوال پوښته چې په دې وخت کې يو سړی ترازو او کانې په لاس په انگړ ورننووت او په کلک ږغ يې ورته وويل: "تا خو ويل چې پر راشه به غنم د پور په عوض کې درکوم او تا ټول غنم خپل کور ته راوړل! خان صاحب خورا په قهر وويل چې دا ځلور پنځه مياشتې کېږي چې تا نه (کورغم) ورکړی او نه دې (سړي غم) ادا کړی دی. روپۍ خو نه لرې، ژر شه غنم راوتله".

مور يې چيغې کړې: "دا څو دانې چې ته يوسې! نو موږ به څه خورو؟"

ده ورته وويل: "خاورې".

سمدلاسه يې اندی راووړ او ټول غنم يې ځني وتلل او په پای کې يې لا نور هم پسې په قهر خوار بزگر ته وويل: "دوه منه خو لا نور هم درباندې پاته شول، هغه به څرنگه شي؟"

خوار بزگر په داسې حال کې چې له خواشينۍ نه يې پر ستونې درد و، تش جوال يې وځانده او يوې خوا ته يې کښېښنود، ماشومانو ژړل او په ژړا ژړا کې يې ويل: "موږ خو وږي يو، تاسې خو به يوه لپه نينې راکولې".

د ماشومانو انا دباندي ولاړه او يو څه شوتل يې په پلو کې راوړل او له مالکې سره يې له ماشومانو سره وخوړل، خو ماشومان په دې تر ډېرې مودې قانع نه شول او د ډوډۍ لپاره يې په ژړا پيل وکړ.

خوار بزګر ته اوس د کلي ګاونډيانو پور هم نه ورکاوه، ځکه له يوې خوا د ده ګاونډيانو هم دغه راز د ناداري تکليف درلود او د بلې خوا ده پر راشه باندې يو دوې کاسې اوړه چې ترېنه پور کړي وو هم بېرته نه وو ورکړي او خپل اعتبار يې بايللی و.

وروسته له هغه چې ډېر فکر يې وکړ، له ځان سره يې فيصله وکړه چې د يووې غويي چې د ده وروستۍ او يوازينۍ دارايي ده او د هغه په مرسته يې د خلکو بزګري کوله د عيال قوت او لايموت لپاره حلال کړي او په خپله سترګې نهامې کړي. په دې خصوص کې يې د مور او مايني رضايت هم واخيست او د يووې غويي يې حلال کړ چې د عيال د منې او ژمې نګولی شي، پخپله لوڅې پښې او برانګه براګه کالي بلې منطقې ته د خوارۍ او مزدورۍ لپاره لاړ.

ده په يوه توده منطقه کې شپږ مياشتې د خاورو او ختو مزدوري وکړه. ده ته يې د ورځې شپږ افغانۍ ورکولې چې درې افغانۍ يې په سپوره ډوډۍ خوړلې او درې افغانۍ يې د کور لپاره سپمولې.

په پای کې د ده ټوله ګټه څلور سوه اته شپېته افغانۍ

شوه چې په درې سوه افغانۍ یې ځان ته پنې او کوچنیانو ته یو یو کمیس واخیستل. دی شپږ میاشتې له کوره خبر نه و او په بېړه او ښه زړه د کور لورې ته را روان شو.

چې د کور په وره ورننوت لور او ماینې یې چیغې کړې. وروسته ورته څرګنده شوه چې مور او درې ماشومان یې د سکاروي په اثر په منې لا مړه شوي دي. یوه ګړۍ وروسته د کلي ملک ورو غوښت او ورته یې وویل:

"ستا د مور او ماشومانو کفنونه مې ورکړي دي، چې قیمت یې څلور سوه درې د پرش افغانۍ کېږي او هم مې ستا پر ځای په دې شپږو میاشتو کې دوه سوه دیارلس افغانۍ کور غم او سړي غم پرې کړی دی. تا خو ځان نهام او خپلې مبلې دې کولې خو ټول غمونه دې پر مور را ایله کړي وو. اوس دستي زما پور چې شپږ سوه شپږ څلوښت افغانۍ کېږي را کړه!"

ځکه چې ده دا ټول رقم پر یوه ځای نه شو تادیه کولای، نو محکمې ته یې کش کړ او بندي شو چې بیا د دې خوار او د ده د کاله احوال چا وا نه خیست.

۱۳۳۰ ش کال – ۱۹۵۱ ع کال

# دا دی خدمت

ټکنده غرمه او داسې تودوخه ده چې ته به وايې لمر ځمکې ته راکښته شوی دی. دا تودوخه په اصطلاح په سر کې ماغزه ایشوي او خلک په کوټو او سیوري کې لا هم طاقت نه شي کولای.

د دې لپاره چې د اغزو له اذیت نه تر یوه حده پورې خپلې پښې وساتي ده په پښو پورې یو څه بړانګې ټوکران او یو څه وانښه کلک تړلي او یو خورا تېره او لوی لور یې چې تازه یوه پښ ورجوړ کړی دی په لاس کې دی او په همدې ټکنده غرمه کې لو کوي. د ده په ځان کې هم کوم داسې کالي چې ځان یې ټول په پټ وي نشته او د لمر تودوخې د ده اوږې، لېچونه، ټټر او لینګي ورتوبخن کړي او د ده د بدن پوست بېخي خرمني ته ورته دی.

په داسې حال کې چې تر ټول بدن یې خولې څاڅي او پر مخ یې له ګرمۍ. څخه توره لمبه ګرځي له ځانه سره ورو ورو دا بدله وايي او په جدیت سره لو کوي:

"لو ګډ دی ببو – ببو نادانې ! لو ګډ دی ببو ".

دا زلمی علاوه پر دې چې خورا نیستمن دی سر په زړه

هم ډېر غمجن دی، ځکه د ده مشر ورور د دغه کال په اول پسرلي کې په لويه تبه مړ شوی دی او دی اوس يوازې دی. د ده ورور به تل باندني کارونه کول، يعنې په بزګرۍ به يې دونه تعلق نه درلود او کال دوولس مياشتې به يې له خلکو سره خپلې دعوې شړلې او هم به يې د ماسلانو او حوالو ځوابونه ويل. خو اوس دا سرګردانۍ او درانه بارونه هم ده ته ور په غاړه دي. له دې جهته د ټولو خلکو وانې (درمندونه) پرتې دي، خو دی اوس لو کوي دا ځکه چې تر اوسه پورې په دغه ډول بهرنيو کارو بوخت و.

که څه هم د ده ځمکه او اوبه لږې دي، خو ده د خپلو مټو په زور تل دا ځمکه ودانوله او هغې ته به يې خورا ښه زور او ډېر انبار (سره) ورکاوه او تل به يې هغه درې هله کوله يعنې دوه درې ځله به يې هغه يووې کوله او ټول هرزه او ناکاره بوټي به يې ترېنه ليرې کول. له دې جهته به د ده د ځمکې حاصلات تر هغو خلکو چې تر ده يې يو په دوه ډېره ځمکه او اوبه درلودې ډېر وو.

د ده په کلي کې درې څلور داسې بډايان دي چې هغوی د خپل ماموريت په دوران کې د رشوت په ذريعه يا ګران خرڅولو په مرسته ډېرې نغدې روپۍ لاس ته وروستلې دي او د هغو په ذريعه يې تقريباً د ټول کلي ځمکې ګرو کړې دي او په دې ډول د کلي اکثره حاصلات دغه يو څو کسه بډې خواره اخلي. د کلي نور خلک په نيم نس ورته ګرځي او په حقيقت کې ټول د دوی په چوپړ کې بوخت دي، خو دوی

خپلې مېلې الوزوي، ځکه چې دوی ته (خدای ورکړې ده) او نور څوک ورسره سيالي نه شي کولای.

دې بډو خورو او ګران خرڅوونکو چې به د دې خواريکښ ځمکې او ډېر حاصلاتو ته وکتل زړه به يې ورته خولې مولې شو او تل به يې کوښښ کاوه چې داسې وسايل برابر کړي چې د هغو په اثر دی مجبور شي او خپله ځمکه پر دوی باندې خرڅه او يا اقلاً ګرو کړي او په دې توګه دوی د هغې ځمکې څښتنان شي، مخصوصاً د کلي ملک چې يو له دغو بډو خورو څخه و تل به يې د ده د ناآرامۍ او سرګردانۍ وسايل راغونډول او په يوه کوچنۍ او جزئي پلمه به يې په محلي دايرو کې چې د وی له کلي نه (۳۲) کيلو متره ليرې وې سرګردانه کاوه او په ده به ئې بې موجبه خرڅونه او مزلونه تحميلول. مثلاً د دغې ورځې په ماښام چې دی کور ته ستړی، وږی، تږی راغی او خپل لور يې لا نه و ليدلی چې د کلي د ملک سړی ورته ورغی او په وچ زږغ يې ورته وويل: "خان صاحب ويل چې سمد ستي يو ځل راشه".

دې وروسته له هغه چې منګی يې پر سر اوچت کړ او تقريباً نيم منګی اوبه يې وڅښلې له دغه سړي سره د خان صاحب حضور ته ورغی او هغه ورته وويل: "هلکه! ته خو د دنيا حرص اخيستی يې! سهار په سپېدو کې لو ته ځې او ماښام ناوخته راځې، څوک دې ليدلای نه شي، پرون زه له محلي مرکز نه راغلم، ګدام دار ويل چې ته څلور نيم منه

غنم د پروسږ کال له بابته باقي يې چې بايد لو، مو دې پربېږدې او سهار وختې دغه مقدار غنم وروړې او تحويل يې کړې، که نه وي، نو ... ".

ده خوارکي چې دا تهديد واورېد سهار وختي په سپېدو کې يې پنځه منه غنم په جوال کې واچول او ور په شا يې کړل او دغه بل ماښام په متې مطلوب ځای ته ورسېد او په دوه، درې شپو کې يې هغه تحويل او خپل رسيد يې واخيست. څلورمه شپه بيرته خپل کور ته راغی، خو هغه کودې چې يې کړي وې هغه نيم نيمښوره پاتې وې، ځينې پسونو سره شيندلې وې او ځينې ورږو تولوونکو وړې وې.

ده بيا په هغه حرارت او مېړانه لو ته ملا وتړله خو دريمه ورځ ماښام چې کور ته راغی کوري چې ماينه يې د پېک ته ناسته او په هغه پسې بوټي سوځوي، د ده تر سپږمو د چرګ د ښوروا بوی شو او خورا خوشحاله شو چې نن خو لکه چې ډوډۍ لنده ده او هغه هم د چرګ ښوروا، له ډېرې خوشحالۍ او حيرانۍ نه مستقيماً د هغې خوا ته ورغی، چې ببخي ورنږدې شو په خورا ښه زړه يې ماينې ته وويل: "نن دې لکه چې زړه رابانده سوی دی او ډوډۍ دې رالنده کړې ده".

خو په دې حال کې يې د دې د ژړا ږغ واورېده.

ده ورته وويل: "خير خو دی! پر څه شي ژاړې؟"

دې ورته وويل: "ولې به نه ژاړم. خو لاس مو په خوله شو

ستا جلب يې راوړی دی، ورشه ! څه اوربشي پيدا کړه،آس يې شوم ولاړ دی او هره ګړۍ اصرار کوي چې ورته نيم من اوربشي ورکړو.

ده چې دا وينا واورېده اعصاب يې بيده او مړه شول او لور يې سوړ له لاسه ولوېد او پوښتنه يې وکړه: "جلب راوړونکی چيرته دی؟" دې وويل: "پر بام باندې له ملک سره ناست دی".

هلته چې ور وخوت او تحقيق يې وکړ، څرګنده شوه چې د ده نوم د تعميراتو په انشاء کې راوتلی دی.

ملک دی دلاسا کاوه او ورته ويل يې:

"دا خو د دين او دولت خدمت دی او د وطن ودانول پر موږ ټولو لازم دي، پروا مه کوه ! زه به ستا د کور او کهول زېرمه کوم. د اوړي عوضونه ارزانه دي او که خدای کول ژر به د ځان عوض ورته پيدا کړې او منې ته به بيرته کور ته راشې. ځمکه که په ګروۍ ورکوې نو ما ته يې راکړه او هر څه چې دې په کار وي دربه يې کړم".

ده خوارکي چيغې کړې چې لو او ژر غنم مې ولاړ پاته شول، خو ملک د دې لپاره چې ژر د ګروۍ قباله تربنه واخلي دستي يې درې زره افغانۍ ورته راوړې او د مسجد په ملا يې عرفي قباله وليکله او سهار وختي يې د اجتماعي خدمت لپاره بوت.

د ده د ولاړو غنمو او د کاله آينده وضعيت چا ته نه معلوم نه شو او په ده هم خدای خبر چې څه وشول.

۱۳۳۰ ش کال - ۱۹۵۱ ع کال

# يو کوندرى او درې ډوله خواړه

خوارکى به سهار وختي راکښېناست او د خپلې ځمکې خوا ته به يې په انبار (سرې) وړلو پيل وکړ.
ده انبار په شا ووړ، د ده کهول ټول اته کسه نر او ښځې وو. ځمکه يې خورا لږه وه، په مشکل يې د دوى د درو مياشتو د ډوډۍ مصرف پوره کاوه. کوم وخت چې به يې د ځينو صحي معاذيرو په نسبت ځمکې ته انبار ورنه کړ نو په دې حال کې خو يې د يوې ورځې ډوډۍ هم نه ورکوله. د پاتې نهو مياشتو ډوډۍ يې په مزدورې او بوټو خرڅولو نيم نيم ښوره پيدا کوله او مړ ژوانده غوندې ژوند يې تېراوه.
درې زامن يې وو چې يو هم تراوو، اتو کلو مشر نه و، چې له ده سره يې کومک کړى واى. لوڼې يې درلودې، خو د عرف او عادت په اساس يې په ژوند کې له ده سره بشپړه برخه نه شوه اخيستلاى او ځرنګه چې وړې وې هغسې مرسته يې نه شوه کولاى. له دې جهته د ژوند ټول بار ته د ده اوږه ورته وه او په خورا زحمت يې دا بار ووړ.
ده يوه ټوټه ځمکه درلوده چې لوړه وه او تر اوبو نه

لاندې کېده. مګر خورا ښه او قوي وه. ده چې تخمين ورته ولګاوه. نو که د بادامو نهالونه يې پکې ايښي واى خورا ښه ګټه به يې ترېنه اخيستې واى، خو په دې شرط چې تر پنځو کلو پورې په هره توګه چې وي اوبه ور وخېژوي. البته وروسته تر هغه به د ونو ريښې ژورې ولاړې شي او اوبو ته به ډېر حاجت نه لري.

ده په دې باره کې ژور فکر وکړ، له دوو ،درو سپين ږيرو څخه چې يې پوښتنه وکړه، هغو هم مشوره ورکړه او دى يې ډاډه کاوه. لوښو او ماينې يې هم دا فکر خوښ کړ او ورته يې وويل چې اوبه په منګيو کې پر اوږو ورخېژوي او تر پنځه کلو پورې به دا تريخ غورپ تېروي.

پسرلى رانژدې شو. ده هم ځان له تاوده وطن څخه چې د عادت له مخې د مزدورۍ لپاره تللى و د نهالګيو د اېښودلو لپاره راورساوه.

نهالګي يې په پور رانيول او وعده يې ورسره وکړه چې په عوض کې به يې په دوبي ورته بوټې وروړي.

رښتيا چې د انسان عزم او زحمت هم عجيبې کارنامې لري او حيرانوونکي ثمرې ښندي، څه موده وروسته هغه خرابه ټوټه ځمکه شين ډب غوندې شوه او نهالګي ونې کېدو ته نژدې شول. هر څوک يې حيران کړل. د ده کاله هم خپله آينده خورا روښانه او مستريحه ليدله او پر دې فکرونو باندې چې ژر به يې باغ بادام وکړي او هغه به په لړ ښه قيمت خرڅ کړي، خوندونه اخيستل. د کاله هر غړي ته د

نويو کاليو د جوړولو او اغوستلو وعده ورکړه شوه ټولو له خوشحالۍ اټڼ کاوه.

دې باغ ته د هر هغه چا چې پنځه غيرانه يې په چمو پيدا کړي وو سترګې اووښتې او په دې ارزو وو چې څه ډول هغه تر لاسه کړي. په تېره بيا خان صاحب خورا شوق درلود چې هغه د دې خوار له تصرف څخه وباسي او ځان ته يې کړي.

د کلي ملا صاحب هم په دې وختو کې د خداى په فضل ښه موړ شوى دى او د يو ښه غټ جايداد خاوند دى هغه هم دې باغګوټي ته چې تر ټولو ښتو، پنځوسو اضافه ونې نه لري سترګې نيولې دي او په دې توګه د دې دواړو ذواتو تر منځ يو ډول رقابت هم پيدا شوى دى.

دې دواړو صاحبانو د خپل مقصد د حصول لپاره له دې خوارکي سره اشنايي واچوله، خو هغه په هيڅ ډول نه حاضرېده چې د خپلو امالو د مرکز څخه تېر شي او هغه وپلوري او تل به يې دوى ته ويل چې ما او د کاله ټولو اعضاوو دې ونو ته انبار پر شا ورکړى دى او به مو پر اوږو ورته ورخېژلي دي، اوس په دې ارزو کې يو، چې د خپلو اوږو د زحمتونو ثمره وڅکو او په خپل عمر کې خو يوه پلا د نويو کاليو د اغوستلو څښتنان شو. خو خريدارانو دې ته غوږ نه نيوه او پر خپل مقصد باندې ټينګ وو.

کله چې دوى د خپل مقصد په حصول کې د روغې او دوستۍ په ذريعه ناکام شول، نو لومړي سرې رسمي

عريضه وربانـدې وکړه او پـه دې يـې تهمتـي کـړ چـې د ده پـور نه ورکوي.

د مقرراتو سره سم محکمې ته جلب شو.

هغـه چـا چـې د ده جلـب راوړی و د ده کـره مېلمـه شـو. د اسـې مېلمنـو تـه خـو لـه دوده سـره سـم بايـد ښـه ډوډۍ تهيـه شـوې وای، نـو د مېلمانـه لپـاره يـې يـو څـه غلمـين اوړه لـه يـو چـا څخـه پـور کـړل او هـم يـې يـو څـه د جـوارو اوړه تهيـه کـړل. ماښـام تـه يـې شـيدې او غـوړوي تيـار کـړل. ده پـه خپـل کونـدري (دسـترخوان) کـې د مېلمانـه خـوا تـه غلمينـه ډوډۍ او د خـان صـاحب خـوا تـه يـې د جـوارو ښـه مـړۍ او خپلـي خـوا ته يې وربشينه ډوډۍ کښېښوده.

لـه بده مرغـه د ډوډۍ خوړلـو پـه وخـت کـې د مېلمانـه ګـوتې د ده خـوا تـه وراوږدې شـوې او وربشـينه ډوډۍ يـې پـه خولـه ورغلـه چـې وروسـته لـه ډېـر قهـر او ... څخـه معلومـه شـوه چـې دې سـړي (درې ډولـه خـواړه پـه يـوه کونـدري کـې) تيـار کـړي وو او پـه دې توګه د خان د قهر او جزا مورد هم وګرزېد.

څرنګـه چـې تصـور کېـده پـه ډېـره لـږه مـوده کـې يـې د دعـوې د اقـامې پـه اثـر د دې خـوار روحيـات او مقاومـت ورضـعيفه کـړل او د دې لپـاره چـې قطعـي نتيجـه واخلـي هغـه بـل سـړي چـې لـه دې ونـو سـره يـې هـم مينـه درلـوده ورګـډ او پـه اتفـاق سـره يـې د اتهـام شـوي پـور پـه مقابـل کـې لـه مقرراتـو سـره سـم ونـې تربنـه تسـليم کـړې او بيـا وروسـته دواړو پـه خپـل مـنځ کې سره ووېشلې.

دې بزګـر پـه يـو عـالم نا اميـدۍ او د خپـل کالـه د کوچنيـانو او لويـانو پـه ژړا او نـارو کـې خپـل دوه خـورا زاړه تلتکـان او د کالـه نـور لوښـي او لرګـي سره ټـول کـړل او پـر شـا يـې کـړل، بلـې خوا ته شـېوه شو.

وروستـه لـه ډېـرې مـودې بيرتـه خپـل کلـي تـه راغـی. البتـه خـورا سـپين ږيـرى شـوى و او غيـر لـه يـوې لـور او زوى څخـه د کالـه نـور ټولـه اعضـا يـې مـړه شـوي وو، خـو پـه کلـي کـې هـم څـوک پـاتې نـه وو او ټـول د ده غونـدې شـړل شـوي او بـې ځايـه کـړل شوي وو.

د ده زوى پـوه او يـو څـه لوسـتى زلمـى و او پـه دې فکـر کـې شـو چـې د کلـي هغـه خـواران او بـاد وړي چـې د ده د پـلار غونـدې بـې لاسـه او بـې پښـې کـړل شـوي وو بيرتـه سـره راغونـډ کـړي او خپلـې ونـې او ځمکـې پـه ګـډه تـر لاسـه کـړي، خـو د ده پـر دې فکـر بانـدې هغـه پـاس ذکـر شـوي دوه کسـان او د دوى غوړه مالان خاندي.

۱۳۳۵ ش کال عقرب - ۱۹۵۶ع کال نومبر

# زه او زما ورور

لالاجان تل وايي او په خورا ټينګو او تودو الفاظو ادعا کوي چې زه او ته خو دواړه همنوع لا څه چې د يوې مور او د يوه پلار اولاد يو، په ختمه يو يو، په يوه کور، په يوه کهول او په يوه وطن کې په يوه آب و هوا سره روزل شوي يو زما ګټه ستا ګټه او زما نقص ستا ضرر دی. که زما کور وران شو، نو ستا دا هم روغ نه پاتېږي. که زه وږی شوم، نو ته به هم موړ نه یې. که ته لوڅ وې، نو زما د پټوالي هم خونده نشته.

ده لا حتی دا هم ویل چې دا پورته ترتیب نه یوازې د وروڼو او هم نژادو او هموطنو په منځ کې یو طبیعي او مسلم امر دی، بلکې دا اصول پر ټول نوع بشر هم صادق او د دوی په ژوندانه کې بشپړ حاکمیت لري.

مور او پلار هم مخ ورواړاوه او د ده وینا یې تائید کړه او ویې ویل چې مشر ورور خو د پلار پر ځای وي او تل له خپل کشر ورور سره د زړه مینه لري، که تاسې دواړه د اتفاق لاس سره ورکړئ او په ګډه کار وکړئ په لږه موده کې به د دواړو کورونه

ودان او هر څه به پکې ډېر شي. هغه خوند چې په يو والي کې وي په بل شي کې نشته.

د کاله نورو اعضاوو هم ملامت کړم او د مشر ورور تابعيت او د هغه سره د مرستې ټينګه توصيه يې راته وکړه. ما چې د ده خوږې او پستې خبرې او د ټول کاله توصيې واورېدلې خپل رضائيت مې ښکاره او تعهد مې وکړ چې هر ډول چې لالا جان امر کوي همغسې به کوم او د خپل کور د ودانۍ لپاره به هر ډول کار او خدمت کوم. په هر کار کې به د ده نقشه عملي کوم او په ټوله معنی سره به د ده په خوله کوم.

سمدلاسه مې په سختو او درنو کارو پيل وکړ په دې منې چې به مې د کاله کارونه وکړه او غنم به مې وکرل په ژمي به مې يو څه رخت رانيو او لويه پنډه به مې په شا پر کليو ګرزېدم او هغه به مې خرڅول.

په اول پسرلي به بيا راغلم او د خپلې ګټې ټوله وجه به مې (لالاجان) ته ورکړه چې هغه يې څرنګه چې لازمه ګڼي په کور کې مصرف او لويو ورو ته کالي ورو وکړي، ټول غنم او نور کښت ما کاوه او بيا مې هغه رېبل او دی به پر تياره او سره راشه راغی او په غنمو به يې اوښان او غوايي بار کړل او کور ته به يې يووړل.

کو مې نغدې پيسې چې به ما وګټلې هغه به مې هم ده ته بشپړې ورکولې. پخپله حتی وږی ګرزېدم

خو دی مې تل په خپله ګټه خوشحاله کاوه.

لالاجان به تل له نېستۍ شکوه کوله او ویل به یې دا ګټه د کاله د خرڅ کفایت نه کوي او ما به تر پخوا لا خپله سعیه پسې ډېره کړه.

یوه ورځ ما ورته وویل: "لالاجانه! دا ته ولې کار نه کوې؟ ټوله ورځ په کاله کې بېکاره ناست یې، که ته هم کار کولای نو یقیناً زموږ عایدات به لا پسې ډېر شوي وای".

ده په تریو تندي وویل: "بې ادبه! تر اوسه تا مشر او کشر پېژندلی نه دی په مشرانو هم څه کار کړی دی؟ کشران هیڅکله د مشرانو په مقابل کې دونه سپین سترګې نه کوي، ځه! خپل کار دې کوه! ستا یې زما په کار او بېکارۍ څه؟"

زما مایني او کوچنیانو به تل ښیرې او خیرن کالي اغوستل او د ټولو مخونه به سپېره او تک ژړ وو، خو د ده کوچنیان به خورا په غوره کې وو. که به مې کله یو زړه شل زړه کړ او د دوی د وضعیت شکایت به مې و ده ته وکړ، ده به سمدلاسه وویل:

"وروره! ته خو لېوني یې، له کومه یې درکړم؟ عایدات د مصارفو کفایت نه کوي، نو زه څه وکړم؟ په خپلو غوښو اور ولګوم؟ دا شکایتونه مه کوه چې په همسایګانو کې به مو آب وا خیست شي او راپورې وبه خاندي".

ډېره موده وروسته مې د يوه بل له خولې واورېدل چې (لالاجان) خو يو سرای او ځو جريبه ځمکه رانيولې ده. لومړی مې دا ويناوې زړه ته نه لوېدلې او فکر مې کاوه چې زما عايدات خو د لګښت مخه نه شي نيولای، نو دا دونه جايداد به يې په څه شي رانيوه؟ خو په پای کې مجبور شوم او يوه شپه مې په ډېر احترام پوښتنه ترېنه وکړه چې د خلکو دا وينا حقيقت لري؟ ده څرک په خپېړه ووهلم او په تريو تندي او خورا غضب يې راته وويل:

"ما ووېل چې ته به انسان شوی يې، خو ته لا هغسې بې عقل يې، ته د دښمنانو خبرې څرنګه منې؟ "

زه هم په خپله پوښتنه پښېمانه وم او خورا ډېر وشرمېدم چې ما ولې داسې بد ګومان پر لالاجان کړی و. د دښمنانو کور دې خراب شي، دوی غواړي چې مونږ سره بېل او د ځان لپاره استفاده وکړي او بيا مې د زړه په اخلاص په زحمت ايستلو پيل وکړ.

شپې، مياشتې او کلونه تېر شول، زمونږ مور او پلار مړه شول، خلکو به تل راته ويل چې د لالاجان روپۍ خو ډېرې دي، په جوالونو کې نه ځايېږي او ته او ستا اولاد ولې داسې خوار او زار او په بده بڼه ياست؟

په پای کې د خلکو مکررو خبرو بيا رابانده

تاثير وکړ او تصميم مې ونيو چې دا ځل به له ده څخه پوښتنه نه کوم او مستقيماً به په خپله تحقيق کوم.
په همدغو شپو کې لالاجان ځان ته يو ګړندی موټر هم اخيستی دی، په خورا تکبر او هسکه غاړه دی او کوچنيان يې په هغه کې هواخوري کوي. په ما غوږ هم نه باسي، بلکې تل په سپکه راته ګوري. له يوه او بل نه مې پوښتنه وکړه، معلومه شوه، چې: لالاجان زما د زحمت له محصول نه تل يو څه پيسې سپمولې او هغه به يې په سود او اجارو ورکولې او په يوه ښه اوږده موده کې يې د ېرې روپې سره راغونډې کړلې.
دې عمل پر ما ناوړه اغېزه وکړه او په وازه خوله مې ورته وويل:
"ظالمه! زه او زما واړه ماشومان دې تل په نس وږي او په تن لوڅ لغړ ساتل او ويل به دې چې ګټه مصرف نه پوره کوي، په پای کې راته ثابته شوه چې حقيقت بل شی و. اوس راځه! ما ته خپل وبش او حق راکړه! زه له تا سره زياتي نه اوسم".
ده په خورا بد وضعيت لکه عادت چې يې و راته وويل:
"ته هم اوس د حق غوښتلو دعوې کوې؟ ځه! ورک شه! ماشومان او ښځه وباسه، نور حق نشته که دې اضافه تر دې سپين سترګې وکړه داسې جزا به درکړم چې په ياد به يې لرې".

خو ما مقاومت وکړ او د حق پر غوښتلو مې اصرار وکړ. ده سمدلاسه خپل يو څو کسه طرفداران يا د پېسو ملګري راوغوښتل او خورا يې ووهلم او يوه اوږده او درنه دعوی يې زما په مقابل کې اقامه کړه. ځکه چې د ده ملګري ډېر او هم يې د روپو قوت لوړ و، زه يې ملزم کړم او نژدې و چې په تور زندان کې مې واچوي او ماشومان او ښځه مې دربدره کړي. په پای کې مې ورته زاري وکړې چې له دې عذاب نه مې خلاص کړه او زه به له خپل حق درتېر شم. ده زما دا پېشنهاد په دې شرايطو ومانه:

۱- هيڅ تا ته به دا نه وايم چې لالاجان زما حق خوړلی دی.

۲- هيڅکله به حتی په زړه کې هم نه راتېروم چې له ده نه حق وغواړم.

۳- که بل څوک ووايي چې ده د خپل ورور حق وخوړ نو زه به سمدلاسه له هغه سره په غاړه کې لوېږم.

۴- که هر څو مره د ده په کار او خدمت کې ستړی او وږی شم، اه به نه کاږم.

۵- ځيني زامن او لوڼې چې مې اوس لوی شوي او په ښه او بد پوهېدلي دي هغه هم بايد د ده په چوپړ کې په خورا صداقت او اخلاص سره بوخت کړم.

د ده دا شرايط مې ومنل، خو اوس دا راته ثابته

شوې ده چې دا شرطونه د زندان تر خواریو ډېر سخت او د زغملو وړ نه دي، نو ځکه مې دا فیصله کړې ده چې بیا د خپل حق د غوښتلو دعوی تجدید کړم او په هر زحمت او هره توګه چې وي هغه باید واخلم.

۱۳۲۹ش کال دلو -۱۹۵۱ع کال فبروري

# د نوي کال خوب

رښتيا چې نوی کال نوي خواهشونه او نوې آرزوګانې د خلکو په ماغزو کې پيدا کوي او نوي امال په زړو کې ژوندي کوي. ما هم د خپلو نويو ارزوګانو په غېږ کې خوب ليده چې د دې نوي کال په يوه ورځپاڼه کې داسې څه لولم:

"د دې لپاره چې د عمومو خلکو له افکارو نه د مملکت د ښېګڼې لپاره استفاده وشي او دوی وکولای شي چې خپل خيالات د اجتماعي کارو په شاوخوا کې لا ښه څرګند کړي د مطبوعاتو قانون پاس شو.

وروسته له دې هر څوک په آزادانه ډول سره د دې قانون مطابق مطبعې له خارج نه راوړلای شي او دا چاپخانې به لکه نور صنعتي ماشينان د ګمرک له محصوله هم خلاصې وي. هر څوک چې له وسه يې پوره وې د ورځپاڼې، مجلې د چاپولو او نشرولو امتياز اخيستلای شي او خپل افکار د خپلې جامعې د تربيې او ښه والي لپاره ليکلای شي".

د دې ورځپاڼې په بل مخ کې مې د "ډېر لږ شو" تر عنوان لاندې ولوستل:

"ګران لوستونکي به خبر وي چې څه موده د مخه يو لوی

شرکت د پترولو د استخراج لپاره جوړ شوی و، د هغه شرکت ابتدايي پانګه شپږ سوه میلیونه افغانۍ وه. دا پانګه د هغو شرکتو له سرمایو نه تادیه شوې وه، کومو چې په دوو لسو تېرو کلونو کې انحصاري تجارت کاوه او کافي پانګه یې لاس ته وروړې وه. اوس په ډېره خوشحالۍ د خپلو ګرانو هموطنانو د خبرتیا لپاره اعلان کوو چې دا شرکت په خپل کار کې موفق دی او اوس دونه تېل راوباسي چې د پترولو له پلوه یې د افغانستان احتیاجات پوره کړي دي. له دې جهته چې اوس پترول پخپله په افغانستان کې مونده کېږي او ارزانه تمامېږي نو وروسته له دې د یوه ګېلن قیمت چې پخوا دیارلس افغانۍ و اوس به په دوه نیمې افغانۍ په آزادانه ډول سره خرڅېږي.

په یوې ورځپاڼې کې چې نوم یې (نوی افغانستان) و داسې لیکل شوي دي:

"د دې کال نوې بودجه پاس شوه چې په دې بودجه کې د افغانستان ټول عایدات څلور نیم زره میلیونه افغانۍ ښودل شوي دي. د دې بودجې لویه برخه د معارف په چارو کې لګېږي ځکه چې د نوي پروګرام سره سم په افغانستان کې نسبت تېر کال ته په سلو کې څلور سوه اضافه مکتبونه جوړ شوي دي او په دې مکتبونو کې دوه نیم ملیونه هلکان او نجونې شامل دي".

او دا دونه ګړندي ډول ډول موټرونه ولې په خورا بېړه دورې رادورې زغلي او د هغوی په څېرو کې یو ډول هیجان

ولې ليدل کېږي؟ او د دې لويې ماڼۍ په مخ کې دا دونه ډېر خلک څه غواړي؟ او داسې ولې وايي: "مزدوران به تر هغو خپل کار ته ولاړ نه شي تر څو چې د دوی د مزدورۍ په شاوخوا کې غور و نه شي او هغه اضافه نه شي". پوښتنه کوم، خو څوک ځواب نه راکوي. پر مخ لاړم او تر دې ډلې لږ څه تېر شوم او ومې ليدل چې د يوه اخبار موزع (وېشونکی) چې غږېږي له اخبارو څخه ډکه ده رازغلي او ناري وهي (د اوسپنې د معدن کارګرانو اعتصاب کړی دی او تفصيل يې په دې اخبار کې چې قيمت يې صرف پنځوس پوله دی ووایاست).

سم دلاسه مې غيران راوکيښ او يوه ګڼه مې ترېنه رانيوله. د دې اخبار نوم دی (ملي ورځپاڼه) او په د برشو مخونو کې چاپ شوی او په خورا غټو تورو يې داسې عنوان ليکلی دی: "د تالې (تاله و برفک) او د اوسپنې د معادنو پنځو لکو کارګرانو اعتصاب کړی دی".

په متن کې يې هم په غټو تورو چې د عنوان تر تورو لږ څه کوچني وو داسې تفصيل ليکلی و: "د تالې د اوسپنې او پولادو پنځو لکو کارګرانو په دې نسبت اعتصاب کړی دی چې د دوی مزدوري اضافه شي، ځکه چې د ژوندانه معيار لوړ تللی او د دوی د اخيستلو قوه لږه ده. د دوی مشران نن مرکز ته راغلي او له مربوطو خلکو سره په خبرو اترو بوخت دي، نتيجه به ژر څرګنده شي".

د دې اخبار بله پاڼه مې راواړوله او داسې پکې ليکلي

وو:

"د ټـول افغانسـتان د اورګـاډي مؤسسـه لـه هغـو وګړو نه چې په ايرکنډيشن کې سفر کول غواړي هيله کوي چې لـه حرکـت نـه يـوه ورځ لـومړی دې د ايرکنډيشن لپـاره پـه (۲۱۲۲۱) لمبـر تليفـون وکـړي او يـا يـې تحريـري غوښـتنه د اورګـاډو ادارو تـه واسـتولی شـي. د ايرکنډيشـن غوښـتنه د افغانستان په ټولو برخو کې منله کېږي ".

اوه، دا خلـک چيرتـه زغلـي؟ يـو سـړی مـې پـه غبـږ کـې ونيـو او ورتـه مـې وويـل چـې تـر هغـه دې نـه پرېږدم تـر څـو چـې د دې منډې وهلو سبب راته و نه وايې!

ده ومسـل او ويـې ويـل چـې: "نـن پـه مرکـزي محکمـه کـې څـو تنـه لـوی رشـوت خـواره د رشـوت خوړلـو پـه جـرم محاکمـه کېږي ".

پـر لاره مـې د (ملـي ورځپاڼـه) اخبـار رانيـوه. پـه يـوه ځـای کـې يـې داسـې ليکلـي وو: "پـرون غرمـه يـوه نيمـه بجـه د پنځـو دقيقـو لپـاره بـرق وځنډيـده او د ښـار ترامـوای او د برقـي مـوټر بسـونه هـم دربـدلي وو. د دې فقـرې د تحقيـق لپـاره کميسـيون وټاکـل شـو او پـه نتيجـه کـې څرګنـده شـوه چـې دا مسـاله د جـوی حـالاتو پـه نسـبت پېښـه شـوې او پـه دې کـې د هيچـا قصـور نـه و. سـره لـه دې د بـرق کارپوهـانو تـه اخطـار ورکـړ شو چې اينده داسې پېښې و نه شي ".

پـه بـل مـخ کـې يـې "لـه کـاره وايسـتل شـو " تـر عنـوان لانـدې داسـې ليکلـي وو: "لـه موضـعه مقرراتـو سـره سـم نـوي کابـل

ناحيې ته مکتوب بايد په شلو دقيقو کې رسېدلی وای خو ځکه چې د يوه مامور د غفلت په اثر يو مکتوب درې دقيقې ځنډېدلی و، نو هغه مامور له خپله کاره وايستل شو ".

په بل ستون کې يې ليکلي وو: "عمومي انتخابات نژدې دي. هر ګوند د خپل کار پروګرام په خپلو ورځپاڼو کې خپور کړی دی او انتخاب کوونکي د مختلفو احزابو په پروګرامو باندې غور کوي او د ګوندونو له ليډرانو ځنې پوښتنې هم کوي، نو ځکه مونږ د دې اخبار د پنځلسم مخ دوهم ستون د دا ډول پوښتنو د پاره تخصيص کړی دی او هر څوک چې د دې اخبار په مربوط حزب باندې کوم تنقيد او تبصره لري هغه به چاپېږي ".

دا اخبار مې په لاس کې و چې يوه لويه کتاب فروشي مې وليده له دستي ور ورختم. په يوه لويه ښکلې الماری کې چې د دوکان د وره خوا ته يې ايښې وه خورا ډېر سپين او ښکلي کتابونه منظم او ډل (ترتيب) شوي وو.

الماری چې مې خلاصه کړه يو څو کتابونه مې راواخيستل د يوه عنوان دا و: "د غلو د مجازاتو قانون"، پر بل (د رشوت خورو د مجازاتو قانون" پر بل "د واده او طلاق قانون" او داسې نور ليکلي وو.

له دې کتابونو مې شل ټوکه راونيول او په ترامواى کې سپور او د کابل اوومې ناحيې ته چې هلته مې کور و تلم.

د کابل دې اوومې ناحيې ته يې پخوا (پغمان) وايه او

اوس هلته د کابل ښار را ارت شوی دی، دا ښار تر ارغندي او بیا تر ریشخورو او سیاه سنګ او د خیرخانې تر کوتله پورې پروت دی، ټول سرکونه ډامبر (اسفلټ) او په دواړو خوااوو یې د برق شنې ښکلې د او سپنې لکړې ولاړې دي. ځای په ځای ښکلي عمومي باغونه دي په هر کور کې د نل اوبه دي. خلک په خورا خوښۍ سره ژوند کوي.

د ولایتونو ښارونه هم خورا ښکلي او د ژوندانه ټول اسباب پکې مهیا دي. د افغانستان په ټولو کلیو کې په سلو کې پنځه د برش کلي د برق رڼا هم لري.

ځکه چې دا سرکونه خورا ښوی وو، پښه مې پرې وښوېده او لاس مې د اوبو په یوه جاري نل پورې ونیو او د اوبو ځاځکي مې په مخ وغورځېدل او مخ مې سوړ شو.

سمدلاسه له خوبه راوغورځېدم چې ګورم د خونې چت مې ځځېږي او دې ځځوبي له هغه خواږه خوبه راویښ کړم.

۱۳۲۸ش کال - ۱۹۴۹ع کال

# څرنګه بډای شوم

يوه ورځ د حاجي صاحب طبيعت خورا صاف و او خپل يوه پخواني خواره ملګري ته يې داسې ويل: "څو کاله د مخه به تل پياز په ګنډه په يوه ګوله ډوډۍ پسي سرګردانه وم او شپې او ورځې مې په خورا توره تياره او نېستۍ کې تېرولې. يو لږ څه مځکه چې راته په ميراث رسېدلې وه هغه مې وپلورله او په پيسو مې يو څه وخت تېر کړ چا چې زما ځمکه رانيولې وه هغه مې داسې بد ايسېدی لکه د مور مېړه خو هيڅ چاره نه وه او يوې خوا ته مې مخ هم نه اوښت، د لوږې او زړه خوږۍ د لاسه مې ښه ژړه او توره غونډې اوښتې وه، که څه هم ما غونډې خو ډېر وو خو بيا هم خلکو ما سره په زړه سوي خبرې کولې او زه يې داسې ناروغه ګڼلم چې نن يا سبا به مرم.

کله چې له هرې خوا راباندې تپه تغره شوه نو خپل کلی مې پرېښود او يوه لوی غونډې ښار ته راغلم څو ورځې مې دې خوا او ها خوا ته تکرې وخوړلې تر څو مې په ډېر زحمت

د يوه ټټار سره کار وموند. اما تر هغه مهاله چې مې کار مونده کاوه د شپې به ماجتونو ته ورغلم او شپه به مې د ملايانو سره تېره کړه خو که رښتيا درته ووايم له هغوی سره هم په عذاب وم ځکه هغوی به هم په ماجت کې له دې امله نه پرېښودم چې د دوی په ډېر زحمت راټول کړي ټوکان به مې په سپين سترګي، خوړل.

ټټار راته وويل: د مابښام ډوډۍ پوه شه او ته! خو غرمه به زه درته ډوډۍ درکوم د ورځې به څلور افغانۍ مزدوري هم درکوم هغه وخت به درته يو زوړ پټکی هم درکړم او يا به يې در رانيسم چې ته د بنۍ وهل ښه زده کړې، هره ګړۍ به اوره نه راته ګروې چې دا راکړه او يا هغه راکړه، خپل کار ته به دوې سترګې څلور کوې".

د بشپړې ډوډۍ نوم خورا ښه راباندې ولګېده که رښتيا ووايم په اورېدو سره مې د خولې نارې بې اختياره غړچ تېرې شوې او د دغه کار او شرايطو د منلو لپاره مې سر داسې وښوراوه چې اوږې او ملا مې هم ورسره وخوځېده.

دا ټټار کلي په کلي ګرځېدو او مور دواړه به د ټټارۍ په سامانونو تر دوو غوږو باروو، هر کلي ته چې به ورغلو څو شپې به مو هلته تېرې کړې او د خلکو لوښي به مو ورسپينول په دغه ترتيب ما د مابښام د ډوډۍ په موندلو کې دومره تکليف نه ليد ځکه چې د ځينو شتمنو خلکو د کاله لوښي چې به مو ورسپين کړل نو هغه به مو تر مابښامه پورې له ځان سره وساتل او مابښام چې به مې هغه وروړل نو

کله کله به مې دومره ډوډۍ څنې راوړه چې موړ په دواړو نه شوه خوړلای.

په لږه موده کې مې ښه سمه سوه او په مخ کې مې وینه وګرځېده او ما هم چې خپل ځان کې غښتلوالی احساس کړ د دې علت دا و چې یو څه په نس موړ شوم، کله کله چې به چا لږ څه لنده مړۍ راکړه نو سهار ته به داسې وم لکه نوی ګل چې وغوړېږي.

یوه ورځ مې خپل یو کلیوال ولید چې تلتک یې په څنګ کې د کلي د ماجت له څنګه څخه تېرېدی ما هغه وپېژاند او له واره ورته راولاړ شوم او په غېږ مې ورسره روغبړ وکړ، هغه راته ځیر شو او ویې ویل: "پر ځای مې را نه وړې، ته د کونډې زوی بډک نه یې؟"

چې ما د ده وینا تصدیق کړه نو ده راته بیا وویل:

"ته خو خورا ژړ پړ وې موړ ویل نن به مرې او سبا به مرې خو ته لا تر او سه پورې ژوندی یې او که خدای کول خورا ښه څټ دې هم کړی دی، لکه چې خورا ښه په نس موړ یې؟"

ما هم بې له فکره او نابېره له ده څخه پوښتنه وکړه چې چېرته درومې؟ ده بیا راته وویل: "ته خبر نه یې خدای زموږ او ستاسې ناره واورېده، ښاغلی... چې زموږ او ستاسې خپل کېږي او ستا خو لا نژدې ماما هم بلل کېږي، د دې سیمې د لوی او غټ مامور په حیث مقرر شوی دی.

د کلي څو کسان چې ورغلل که څه هم له ده سره یې کومه نژدې خپلوي نه وه خو بیا یې هم هر یو علاقه دار، میرزا او

څه څه مقرر کړل. زه هم راروان شوم چې ګونډې پر يوه کار مې ودروي. که نور هيڅ نه وي نو يوه غوړه ميرزايي خو به راکړي ".

وروسته له يوه څه ځنډه يې بيا راته وويل:

"ته دلته څه غواړې، ورشه خپل وتري دې راټول که او درځه چې ژر ورشو ګونډې خداى، پيران او نېکان مو يوه په زړه پورې چېټه وکړي. په تېره بيا تا به خورا وغټوي ځکه چې ډېر ورنژدې بلل کېږې ".

د دغه ښاغلي دې خبرو پر ما خورا ژوره اغېزه وکړه او بې له دې چې ډېر چرت ووهم ورته ومې ويل: "پر دغه ټټار زما مزدوري پاتې ده، که ورته ووايم چې ځني وزم نو ګومان نه کوم چې زما حساب راخلاص کړي، نو پيسې به مې وسوځي، ته درځه زه درپسې يم ".

ده په خورا ښه زړه او جرئت راته وويل: "په دې پيسو پسې څه ګرځې درته ومې ويل چې خداى زموږ او ستاسې چېټه له خپله غيبي دره څخه وکړه، ته لا ماتې ګوډې پکښې کوې درځه زه خو لا دا وايم چې وتري هم ورپرېږده او درځه که يې ښه کار په لاس درکړ دا ټس او پس پيسې به دې له ياده ووځي که چيرې ببخې پسې خپه وې نو هغه وخت به ټټار راوغواړې او ټولې به ځني واخلې ".

زه هم زړه واخيستم او سمدلاسه له خپل استاد څخه راوښوييدم دريمه شپه هغه ټاکلي ښار ته راغلو، زموږ د (غټ سړي) د وره په خوله کې سپاهيان ولاړ وو چې موږ يې دننه نه ورپرېښودلو. خو له نېکه مرغه زموږ بل کليوال له دننه څخه راووت او موږ ته يې وويل:

"بیایید او بچه بما نیشنان".

سمدلاسه دواړه په یوه خورا ښکلي باغ ورننوتو چې ما داسې ښکلی ځای نه لیدلی و او نه مې د هغه تصور کولای شو.

وروسته له روغبړ او پوښتنو څخه ما په خندا د ټوکو په چم ورته وویل چې تا خو له موږ سره هم په ناآشنا غوندې ژبه خبرې وکړې، لومړی تر هغه چې دی څه ووایي زما ملګري ځواب راکړ:

"تا نه دي اوریدلي چې (مړه ګېډه پارسي وایي)، زموږ په ګېډه موړ کلیوال لږ څه موسکی شو او په داسې حال کې چې خپله خولۍ یې له سر نه بیرته کړه وې ویل:

"ژرنده که د پلار ده هم په وار ده".

بیا یې غاړې تازه کړې او وې ویل: "اوس زموږ او ستاسې وار دی، هر څه خپل وار تېر کړ او ځانونه یې ښه وپړسول، موږ ته هم خدای په ښه نظر وکتل نورې خبرې پرېږدئ تاسې ورشئ لږ څه خپل سرونه، پښې لاسونه پرېمینځئ، زه به... صاحب ته ستاسې د راتګ ووایم، هیله ده چې ژر مو کار درفیصله کړي".

څه مُازغه (ماغزه) به دې تووم په درې څلور ورځو کې زموږ کارونه معلوم شول او زه یې په ګمرک کې مقرر کړم، اندېوال مې هم د یوې سیمې حاکم شو، دا متل خو به دې اوریدلی وي چې وایي:

"خدای چې یې درکوي نو د پلار نوم دې نه پوښتي".

بازار ته ولاړم او یو خورا ښه میرزا مې مونده کړ او د خپل ماموریت خوا ته وخوځېدم هر څوک راڅخه ډاریدل په

تېره چې بيا به څوک پوه وو چې زه د ... صاحب يوازينی کليوال نه بلکې خوريي يې هم يم، په دې کې څه شک دی چې کارونه خو ټول ميرزا کول او په خپله مې روپو ته د جوال خوله نيولې وه او له هرې خوا داسې روپۍ راباندې توېدلې چې تا به ويل باران يې راباندې اوري.

خو زما له ناوړه بخته ژر راباندې سهار شو او زموږ غټ مامور په يوه نامعلوم سبب له کار نه لاس واخيست، زموږ نور کليوالان چې په دې ټکه خبر سوي وو نو ژر يې خپلې پښې کښلې وې او څه چې يې موندلي وو هغه يې تر بېغمه ځايو ورسول، خو زه وروسته خبر شوم او اکثره شيان چې مې له خلکو څخه راغونډ کړي وو هغوی بيرته را څخه واخيستل، خو سره له هغه که څه هم لږ وو خو يو څه لاس ته راغلل.

په هغو پيسو مې سمدلاسه سوداګرې شروع کړه او څو پلا مې مال په پټه يووړ او راووړ، څه موده وروسته ما په دغه کار کې ښه لاس مونده کړ او د ګمرک د دلال سره مې جوړه راغله.

څه به درته وايم ورور ګله کيسه لنډه چې په دې برخه کې خدای خورا ډېرې روپۍ لاس ته راوستې، ما هم هغه خوشې او بې ځايه نه خرڅولې او سمدلاسه مې مځکې په رانيولې چې بيا وروسته مې په دې لوی ښار کې کورونه هم رانيول.

اوس نو سو که ورته ناست يم، يوه پښه مې پر بله اړولې ده او د پيل په غوږ کې پروت يم، که ټوله نړۍ اور واخلي او خو استغې شي زموږ (د رب فضل دی) غوږ والله که پرې

خبر شي، د یوه پر ځای مې اووه حجه کړي دي. سهار وختي لمونځ کوم او د رب ثنا وایم په لونو او زامنو کې پټ یم ځلور ماینې لرم. والله که پرې خبر یم چې دنیا له کومې خوا راځي او پر کومه خوا ځي. خوار او غریب هم زما له دره نامینده بیرته نه درومي، زما خپل شخصي ملا صاحب هغه ورځ نابېره راته وویل: "زړه مې داسې راته وایي چې خدای هم د دنیا لار درسمه کړه او هم د دین، د دین لار دې ځکه سمه ده چې خوار او غریب کله کله څه کوې، چې البته په دغه کار خو خدای خورا خوشحالېږي.

خو له بلې خوا که رښتیا درته ووایم سره له دغه دومره ثروته او بډایي بیا هم په دې وختو کې نا آرامه غوندې یم، زما دا ناآرامي د هغو (خوارانو او اوپره) خلکو له لاسه وه چې دوی ځانته پوه وایي خو د جېب په کونه کې یې سره ایکې نه موندل کېږي، له خدایه رزق نه غواړي او زموږ بډایانو په کونه پسې دي.

دوی تل غاښونه راته چیچي چې:

"تاسې دا شته په ناروا توګه د خلکو له خولې څخه راټول کړي دي". خو موږ ورته وایو: "موږ ته خدای راکړي دي".

اوس نو ته ووایه چې کومه ډله او طبقه ګرمه ده. حاجي صاحب زما ځواب ته هیڅ انتظار ونه ایست او په بېړه د لمانځه لپاره جګ شو.

د کابل مجلې د ۱۳۳۷ کال د پنځمې ګڼې ۲۲ مخ

پـــــــای

